۹ ع
قوس ۱۳۵۰



# کندهار



دپوهنې وزیر ښاغلي حمیدالله عنایت سراج په داسې حال کښې چې د نجات
دلیسې نوي ودانۍ پرانیزي

# د کندهار مجله

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتی مؤسسه
د مسؤل مدیر وکیل: غلام محی الدین (ایوبی)
مهتمم: عبدالکریم طالب
کندهار
میاشتنی خپرونه
ادبی، تاریخی، اجتماعی، علمی
اداره: د شهیدانو واټ
د تأسیس کال ۱۳۳۹
د دولسم کال نهمه گڼه
پر له پسې گڼه ۱۳۵

کالنی بیه
په کندهار کی [۲۸] افغانی
د هیواد په داخل کی [۳۲] د
په د باندنیو هیوادو کی یو ډالر
د لیندی میاشت
۱۳۵۰ لمریز کال

---

## ددې گڼې مضامین

# صناعتي او توليدي چارې

زموږ د عصر د مهمو انکشافاتو څخه يو هم د صنعت پرمختګ دى په آپره بيا اوس د تخنيك په برکت مترقي انسانانو خپلو صنايعو ته زياته وده ورکړې او خپل فردي او اجتماعي ژوندئې له دغې لارې څخه پرېښو درولى او د بېلو بېلو صنايعو او توليدي چارو دانکشاف او تقويې د لارې څخه ئې هم خپل ځان او هم نورو ته خدمت کړى او کوي ئې .

ن دمخ په انکشاف هيوادونو کوشش هم دادى چې پخپلو هيوادونو کې د بېلو بېلو صنعتي دستګاؤ او فابريکو د په کار اچولو د لارې د يوې خوا خپلو خلکوته د کار او فعاليت زمينه برابره او د بلې خوا د خپل اړتيا وړ مصنوعات او شيان پخپلو هيوادو کې د ننه توليد او ځانونه ترډېرې اندازې د نورو د احتياج څخه وساتي او په دې توګه د ملي صنايعو د پرمختګ د لارې خپل اقتصاد لوړ او ژوند سم کړي.

زموږ په هيواد کې هم د يو څو کالو نو راهيسې حکومت زيار باسي چې هيواد د صنايعو له پلوه پرمخ ولاړ شي او له دغه کبله نسبت پخوا نيو کلونو ته د هيواد په بېلو بېلو سيمو کې د صناعتي دستګاه ؤ او فابريکو شمېر زيات شوى او نه يوا ځې يو ه زياته اندازه دولتي پانګه په صنعتي سکتور کې په کار لوېدلې بلکې په دغه لار کې د حکومت د تشويق او مرستې له کبله خصوصي پانګه هم د استهلاکي مالونو د وارد ولو پر ځاى د فابريکو ورو او لو يو صناعتي دستګاه ؤ راوړلو او درولو ته متوجه شوي او زموږ حساس او وطندوست سوداګر اوس خپل کوششونه او پانګه زياتره په صناعتي ساحو کې په کار اچوي او د دې پر ځاى چې خپلې پيسې يا په تجربو کې راکدې پرېږدي ، يا په مځکو ، باغونو ، دکانونو او داسې نورو شيانو پې بندې کړي او يا سره زر په رانيسي ، د هغو په عوض کې څو تنه خپلې پيسې سره يو ځاى کوي او په ګډه د فابريکې راوړلو ته هڅه کوي او په دې توګه هيواد او لوته د دغې لارې څخه لوى خدمت سرته رسوي.

په کندهار کې چې د پخوا څخه زمينه د صناعتي او توليدي چارو انکشاف ته بوره مساعده ده او زموږ حساس سوداګر هم غواړي چې د يوې خوا خپلو خلکوته خدمت وکړي او هم خپله پانګه د صناعتي توليداتو د لارې په دوران کې واچوي او بهترينه ګټه لاس ته وروړلى تر اوسه پورې يو شمېر فابريکې او صناعتي دستګاوې په کار اچولې چې ځينې ئې اوس هم شته او ځينې نورئې د ځينو علتونو له کبله د توليد څخه لوېدلې دي.

اوس زموږ په ولايت کې د يخې جوړو لو دوې فابريکې د وړ يو د اود لويوه لږيه فابريکه د مېوې د ساتلو فابريکه ، او د کشمش پاکولو صناعتي دستګاه شته چې کار ځنې اخستل کېږي ، دغه رنګه د چرم جوړولو او پيکل روې فابريکې هم شته خو بده مرغه تر اوسه پورې چالانه شوي نه دي ، دغه رنګه يو شمېر د اوړ ژرندي او نورې وړې دستګاوې هم چالانه دي ، د پښتون شرکت چې بهترينه

( د پښتې په دريم مخ کې )

له خارجي منابعو څخه:

پښتو کوونکی طالب:

# څله د تصميم په نيولو کښې

## په دوو زړو کي پاتي ؟

د دې لپاره چي ښه تر اتصميم ونيسی او قوي عزم ولری، څو ساده نکتی ...

که موږ د ډلو ونکي د سستی ارادې او ناسو کولای چي ښکاره او قطعي تصميم ولرو، بيله شکه د امسئله له دې ځايه

د ابيداده چي موږ پدې برخه کښې څر گنداو دوهپانه سنجش او فکر نه لرو چي څه غواړو، کومه لاره مو په مخ کښې ده او چيري ځو ؟

ټنګک عزم او قاطع تصميم ايجابوي چي بداسی اصولو، ارزښتونو او احساس باندی تکيه ولرو چي موږ ته اقدرت را کړی

چي د يوه شي ارزښت په بل باندی، وپيژنو او هغه غوره کړو .

که موږ بر اصولو، ارزښتونو او احساس باندی تکيه ونلرو تل به له يوه ښاخه بل ښاخ ته الوزو او د به نه کړای سو په يوه مسئله

کښې چي د تصميم د نيولو نه اړه تيا لري، د خپل ځان ته د «هو» يا «نه» جواب ووايو .

البته، تل د «هو» يا «نه» ويل يو ساده کار ندی او يوه مسئله چي و ادا سی جواب ته اړه تيا لری، د ښه د ژبه پر ده کښې پټه لی وي؛ د

مثال په توگه، سگريټ څکول، زيات خوړل، شراب څښل، او داسو نور، ښايی له ځانه سره پټ هيجانات ولري. سگريټ څکول زيا تره د ويښی په فشار او د

د بدن په نورو نارو غيو بودې اړه لري نو د مخه تر دې چي د هغه د څکولو يا پر ښودلو تصميم ونيول سي، وطبی پلټنو ته اړه تياسته .

دغه ډول که په جنسي مسايلو او شراب څښلو کښې د افراطي بڼي دغوره کولو څخه مقصد، زيا تره د ځان د ضعف

او سستي پټول دي. نوی ځوان تر حده زيات شرا بو څښلو باندی په ځان کښې دلويوالي احساس کوی خو په اصل کښې هيڅ نه لري . سپين ږدی او و مسن

خلک د زيا تو جنسي تمايلا تو او غوښتنو په ښکاره کولو، هغه څه چي په برا خه پيمانه يې نلري، څر گندوي. ډير کسان شرا بو ته پناه وړوړي او ډير هغه شيان

چي کر که ځني کوي خپل ضعف او سستي د هغه پواسطه هيروي .

څر نګه چي موږ ږه وي خپله اراده قوي کړی او د تصميم و نيسی په هغه باندی

ټينګک اوسي . لومړی ګام دادی چي خپل ځان وپيژنی ښايی نور عوامل هم پدې ترڅ کښې د يادلرنی وړوي، خو

تر ټولو ښه عامل ځان پيژندنه ده چي و يو هيڅ ټه اړه تيا لرو، څو نه توان او قدرت لرو او زموږ دژوندانه مخکی تر کومه ځايه پر تی دی؛ مثلا تاسی

تشخيصوی چي زيات خوړاک کوی او د ازيات خوړاک له دې امله دی چي د ژوند له لاسه بې

حوصلي سوي ياست او بيله خوړاکه بل ښه کار نسی تر سره کولای . پدې صورت کښې هيڅ

په و نه شی که غذايي رژيم و نيسی د هينو خوړوله خوړاکه ډه ډه وکړی او دغه کار ته دوام ورکړی .

مهمه داده چي و پو هيږی ولی بې حوصلي ياست . پدې ځای کښې د تصميم او ارادې مسئله

مطرح نده، دلته ځان پيژندنه مطرح ده او ددې علت معلومول چي تاسي و زيات خوړاک ته

اړ باسي . پدې صورت په آسانی کولای شی چي د هغه سره مبارزه وکړي . په رشتيا ډير ځله بې خبره او د تجربې نه درلودل، زموږ د تصميم او ارادې د ضعف او سستی سبب ګرځي . پدې حال کښې لکه

د قبال گينه د د وستانو او اوآشنايانو له خوا، يوې خوا او بلې خوا ته وهل کيږو .

نو د داسی چال چلند سره بايد په مبارزه گوتې پورې کړو، وگورو، پلټنه وکړو، فکر وکړو، پوښتنې وکړو د يوه او بل کار و ته وگورو او نتيجه ځني واخلو ...

داهم بایدومنو چې کله کله دیوه تصمیم په نیولو، ښایي سمه لاره پیدا نکړو.

ددې څه هم ستر ګی ته پټوو چې څنې وختونه زموږ لپاره دتصمیم نیول ګران تما میږي، ځکه بیربیږو د خپل تصمیم له اصله داعتقاد سره مخامخ نه سو اود نه رضا ایت اسباب راغونډ نه کړو.

پدې وختو کښې داسې ندې چې موږ د ارادې او تصمیم دستنې سره مخامخ یو، خو څنې نور قوي عوامل سته چې هغه‌یې تر خپل تأثیر لاندې راوستي دي.

په رښتیا، ټوله اړخونه سنجول او باخبره تصمیم نیول د ارادې ستنې نه ښیي د تصمیم په نیولو کښې باید واقع بینه اوسو له تلوار نه ډډه وکړو. کله داسې پېښیږي چې بې سنجشه تصمیم نیسو او دوسته زموږ دخواښینې سبب کیږي. اول فکر وکړی، د کار ټول اړخونه وسنجوی بیا نو تصمیم ونیسی. داسې تصمیم نه یوازې زموږ دارادې په ټینګتیا بلکه زموږ پر ژور فکر او سنجش باندې دلالت کوي.

پدې ترڅ کښې باید د سر ټمبګی او ټینګی ارادې تر منځ توپیر وکړو. کله کله، څنې کسان چې دستې ارادې خاوندان وي چې تصمیم نیسي سر ټمبګی کوي. لېکن کوی او له‌زوره کار اخلي یعني هر وساده قرینه دحل لاره چې وویني، هغه‌لاره تلاکي. په بېخبره یا باخبره توګه دغه احساس کوي چې فرصت ورته برابر شوی‌دی ددې لپاره که دنورو سره مخالفت کوی، ډېری‌ته سر ایسي او دغسې چال چلند غوره کوي. ښکاره خبره ده چې دا چال چلند د ټینګښت عزم او ارادې نښه نده، دا دروحې ضعف او کمزورتیا علامه ده.

د سر ټمبګی سره مبارزه،

د هر انسان یوه حیاتي مبارزه ده څنې وخت، ددې واقعیت د نه‌منلو په خاطر چې اشتباه کوو، سرټمبګی ته‌ملاوتړو او یوازې د شخصي صداقت په‌اساس کولای سو چې ددغه‌روحي ضعف سره مبارزه وکړو. دا صحیح نده چې موږ د نورو احساسات او افکار هیڅ ونه بولو، لېکن باید او سرټمبګی و کو، ددې لپاره چې څرګنده کو چې موږ د قوي ارادې خاوندان یو، نورکسان هم ددې لپاره چې خپله بې پروایي څرګنده کړي او دوایې چې د قوي ارادې درلودنکی یو، نو امکان لري چې ستاسې په مقابل کښې صف جوړ کو او پدې صورت ښایي ستاسې تر منځ شخړه پېښه‌سي. پدې ډول:

هغه‌وکی چې ځان ښه‌وپیژني. وګوري چې څه‌غواړي، کومه لاره او په‌مخ کښې ده او چیري ځي.

دتصمیم په نیولو کښې په دوډ زړه کښې مه اوسی، په عین حال کښې دتلوار څخه ډډه وکی او واقع بینه اوسی.

دنورو احساسات او افکار هم په نظر کی ولري.

(پای)

## دلوبانوو یناوي

بشر دځان په نسبت ډیر بې رحمه حیوان دی.

(نیچه)

هرستر اقدام په ابتدا کښې محال ښکاري.

(توماس کارلایل)

درې شیان ډیر سخت دي: فولاد، الماس او ځان پېژندل.

(فرانکلین)

بڅه دخپلو دښمنانو له‌پاره دومره مه تودوی چې ګرمي یې تاسې په‌خپله وسوزوي.

(شکسپیر)

داسې ښکلي ګلان شته چې بوی نلري او داسې ښکلي ښځې هم شته چې دچانه خوښیږي.

(هوګل)

کله چې دلومړي ځل لپاره کوم ښه کتاب لولو، داسې معنی ورکوي چې د کوم نوي دوست سره مخامخ شوي یو کله چې هماغه کتاب دوهم ځل بیا لولو داسې معنی لري لکه د هماغه پخواني دوست سره بیا ګوردو.

(انتوني ژولوب)

پښتو کونکی: رحمت الله (مړوند)

# د مریخ ستوري تقریباً «۳۳۵» ملیونه کیلو متره مځکې ته

ژړدي‌سوي‌دي

د مریخ ستوری چې د سماوي اجرامو له ډلې څخه شمېرل کیږي په شمسي منظومه کښې واقع دی.

دغه ستوری د لمر څخه (۲۲۷) ملیونه کیلو متره لیري دی په داسې حال کښې چې د دغه لیرې واټن د مځکې د کرې څخه تقریباً (۴۰۰) ملیونه کیلو متره دی.

دغه ستوری هم د نورو سیارو په شان د لمر په شاوخوا دیوه بیضوي دایرې په شکل او یو کال او (۳۲۲) ورځې په بر کښې نیسي همدغه رنګه د مریخ وضعي حرکت په (۲۴) ساعته (۲۳) دقیقې او (۲۷) ثانیو کښې سرته رسیږي د دې ستوري د حرکت تیز والی په لایتناهي فضا کښې په ثانیه کښې (۲۵،۴) کیلو متره دی جسامت ئې د مځکې د کرې په نسبت په سل کښې (۱۱) او حجم ئې په سل کښې (۱۶) دی چې مخصوص درون والی ئې تقریباً په سل کې (۶۹) او شعاع ئې (۳۳۹۵) کیلو متره ده.

د نړۍ د کیهاني پوهانو دیوه ډلې د نظر په سر وسم د مریخ ستوری به د (۱۹۷۱) کال د اګست په میاشت کښې (۳۳۵) ملیونه کیلو متره د مځکې د کرې ته نږدې سي.

دغه پیښه په هرو (۱۵) او یا (۱۷) کلونو کې یو ځل تکراریږي لوی او حیرانوونکې برېالیتوب دی چې په دې وروستیو وختونو کښې د سماوي اجرامو په باب د پوهانو په برخه سوي دی د نړۍ په تاریخ کښې بې‌ساري بدلونونه دي.

د تېرو زمانو راهیسې انسانانو هیله درلوده چې د سماوي اجرامو پټ رازونه او اسرار ښکاره کړي تر څو چې تر یو لیې پر له پسې هڅې لیټونو وروسته د نړۍ کیهاني پوهان برېالي سول چې لومړنی انسان یعنی (امریکائي نیل آرمسترانګ) د سپوږمۍ پر اسرار آمیزه سطح باندې قدم کښېږدي. خو وروسته پوهان پدې عقیده سول چې د کوښښ په مقابل کښې هیڅ کار او هیڅ شی ناممکنه نه دی او داده چې امریکا او شوروي اتحاد فضائي بېړۍ د نورو سماوي اجرامو د تسخیر او په لاره کښې کوښښونه کوي.

د امریکا متحده ایالاتو (ناسا) فضائي اداره په نظر کښې لري چې (۱۱) کاله وروسته یعنې د (۱۹۸۲) کال په جریان کښې په انسان د مریخ پر کره باندې بلی کړي. عجیبه لا دا چې یوه امریکائي ښځه هم د او طلبه سوې او غوښتنه ئې کړې ده چې د مریخ پر سطح باندې ګام کښېږدي.

تراوسه پورې لومړنۍ ښځه چې ورد باندې فضاته ئې سفر کړی دی د شوروي اتحاد او سیدونکې میرمن (ترشکوا) ده. په هر حال د څو مودې راپدېخوا د امریکا او شوروي اتحاد هیوادونو بې شمېره فضائي بېړۍ د آسماني ستورو لکه مریخ، زهره، عطارد او داسې نورو خوا او وته توغول دي چې د همدې هوائي بېړیو په لیږ کښې د شوروي اتحاد څو (وینوسه) چې بېله چلوونکې وه عملاً د زهرې د ستوري پر سطح باندې کښېنولی او د همدغه ستوري پر سطح باندې ئې د مځکې د کرې ته معلومات نه رالېږلي دي چې دا استفادې په غرض ئې د پوهانو ته ورانده کړی دي.

(۴مخ)

همدغه رنګه د امریکا د متحده ایالاتو د «ماسیز» نومو هوائي بېړیو له جملې څخه څو بېړۍ د مریخ د ستورې پر لور استول شوې دي چې ګټور معلوماتونه یې د مځکې و کرې ته را استولي دي.

همدغه رنګه د دغو نومونو فضائي دستګاو په وسیله ئې عملاً اعلان کړی دی چې د مریخ په کره کښې دوې حیاتي مادې یعنې آکسیجن او اوبه شته.

همدغه راز پدې ورستو وختونو کښې د امریکا د متحده ایالاتو او شوروي اتحاد څو هوائي بېړۍ د (سیوز) او (مارنیز) په نومونو د مریخ و کرې ته استولي دي چې وروسته له ٤ میاشتو هغه ته نژدې سوي ګټور او په زړه پوري معلوماتونه به د پوهانو لپاره برابر کړي ضمناً امریکا په نظر کښې لري چې د ۱۹۷۳ کال په اوږدو کښې په دوو مجهزو هوائي بېړیو د (مارسیز) پنامه بېله چلوونکي د مریخ د کرې پر سطحه باندې پلې کي او د هغه مخصوص کپسول په وسیله به چې د نوموړي ستورې پر سطحه باندې ځای نیسي د هوائي او جغرافیائي څرنګوالي په باب ګټور معلوماتونه د پوهانو ته نقل کړي.

دادې پدې وختونو کښې د مریخ ستورې (۳۳۵) ملیونه کیلومتره د مځکې ته نژدې کیږي څکه نو د نړۍ فضائي محفلونه او کار پېژندونکي تیاري نیسي چې د دغه ستورې د سمبال شوي دستګاو او تلسکوپونو په ذریعه د نژدې څخه وویني او د دغه ستورې څخه په ګټور معلوماتونه د جغرافیائي او فزیکي او نورو وضعیتونو په باب د نژدې فاصلې څخه په استفاده کولو سره لاس ته راوړي.

د شوروي اتحاد ستورې پېژندونکي په نظر کښې لري کله چې د مریخ ستورې د مځکې ته نژدې شي د آذربایجان د علومو د اکاډمۍ د رصدخانې، د تاجکستان د علومو د اکاډمۍ او همدغه رنګه د تاجکستان د نجومي فزیک د انستیتوت له لارې به دغه ستورې په غور سره وویني او د مریخ د سطحې د مفصلو نقشو په باب به فزیکي او جغرافیائي ګټور معلوماتونه لاس ته راوړي.

دغو مریخ د پېژندوالي او نارنجي رنګه ودیځو او نورو د پیدا کیدو په باب به پوره مطالعات وشي خو به هر صورت د ۱۹۷۱ کال د اګست په میاشت به د مریخ د ستورې ګټور معلوماتونه د پوهانو لاس ته ورسي او دغه مطالعات به د کیهانوردانو په دراتلونکو مسافرتونو کښې د مریخ پر کرې د انسان د پلې کیدو په باب مهم رول ولوبوي.

په هر حال خلکو ته دا نه ده څرګنده چې آیا د مریخ پر سطح باندې به د لمړي ځل لپاره امریکایان پلې سي او که شوروییان؟ خو ویلای شو حالاتو ته باید په انتظار کښې سو چې د مریخ ستورې لمړی د چا له خوا نیول کیږي. که څه هم د خارجي فضا د نیولو په لاره کښې د امریکا د (۱۳) اپولو او شوروي اتحاد د (۱۱) سیوز غمناکې پېښې د ټولو خلکو په ذهنو کښې دا سوال پیدا کړی چې ممکن فضائي پروګرامونه وروسته پاته شي خو څرنګه چې لیدل کیږي دې دواړو هیوادونو په فضائي پروګرامونو کښې هیڅ ډول وروسته والی نه دی راغلی او د فضائي کار پېژندونکو هغه پروګرامونه چې د خارجي فضا د نیولو لپاره طرح شوي په ډېره چټکتیا سره تطبیقیږي او د هوائي بېړیو لکه (سیوز، مارسیز، او اپولو) د استولو او لیږلو په کار او فعالیت لګیا دي.

(٦ مخ کښې)

## د نېکمرغۍ راز

د نېکمرغۍ او فضیلت راز په دې کښې دی چې هر کار کوې په ښه شوق او خوشحالۍ سره اېې وکړې.

هغه مشکلات چې د فضا د تیولو په لاره کښې سته د کافي بودجې نشتوالی دی. څرنګه چې له دې جملې څخه د کیپ کنیډي د (ناسا) په هوائي دستګاوو کښې په زرو زرو خلک کار کوي او ډېر زیات مصرف لري. هغه لګښت چې د سپوږمۍ پر سطح باندې د انسان د ښکته کېدو لپاره سوی دی (۲٤) ملیارده ډالره ته رسېږي ددې سببه اوس یو ډله خلک د فضائي پروګرامونو بدبینه سوي او وائي: ددې لپاره چې زموږ نړیوال له فقر او بیچاره ګۍ څخه خلاص سي نو باید د هغه مصرف د خلکو د ژوند د سمون په لاره کښې وسي. همدا رنګه یوه ډله پوهان او خلک بیا ددې پروګرامونو ته خوشبینه او طرفداره ئې دي چې د همدې پروګرامونو دوام به ممکن په راتلونکي وخت کښې د غذائي او خوراکي موادو لپاره والی او همدا رنګه د خلکو د نړیوالو مشکل حل کي.

په اوسني وخت کښې د امریکا په متحده ایالاتو کې د ریچارد نکسن جمهور رئیس او سپیرو واګنیو د جمهور رئیس مرستیال د فضائي پروګرامونو ته خوشبینه دي او د همدغه هیواد د کانګرس څخه ئې غوښتنه کړې ده چې د فضائي پروګرامونو بودجه تصویب کړي څو د مریخ پر سطح باندې د انسان د ښکته کېدو په پروګرام کښې ځنډ وانه سي.

اګنیو وېلي دي چې موږ امریکائیان باید تر (۱۹۸۲) کال پورې د مریخ کره ورسېږو چې البته د هغه کار به د امریکائیانو او نورو له نړۍ په ګټه وي. د امریکا د مهمو شخصیتونو له ډلې څخه یو هم (ادوارد کنیډي) دی چې د فضائي پروګرامونو طرفدار نه دی ده په دې لږ وروسته وختونو کښې وېلي دي «هغه پیسې چې د فضائي پروګرامونو په لار کښې لګېږي هیله ده چې هغه د صلح په لار او د خلکو د ژوند په ښه کېدلو باندې مصرف شي په هر حال فضائي پروګرامونه به له کم ځنډه دوام لري او بدې هکله فعالیت کیږي چې د امریکا د (۱۵) اپولو توغول د سپوږمۍ پر لور د یادوني وړ دی.

پنځلسم اپولو د خپل درو تنو هوائي بېړۍ چلوونکو (دیوید سکات، آردوین او الفرد وارډن) سره ډېر سخت فضائي مسافرت سر ته ورساوه دوی وظیفه درلوده چې د سپوږمۍ د جګو غرونو یعنې د (۲۰۰۰) فټه جګوالي څخه زیات پورته ولاړ سي او همدغه سبب و چې پورته ولاړه ګټور مطالعات ئې سر ته ورسول همدغه رنګه ئې د هرابي لرونکي وسیلې په واسطه د سپوږمۍ پر مخ ګرځېدنه وکړه.
د هغه د سپوږمۍ موټر د (۳۸۰۸) ملیونو ډالرو په مصرف جوړ سوی دی.

کیهانوردان (۲٤) ساعته د سپوږمۍ میلمانه وه که څه هم د سپوږمۍ کره د بشر د اوسېدلو لپاره مساعده نه ده خو د نورو ستورو د تیولو په برخه کښې د علمي لحاظه زیات ارزښت لري.

اوس بده نه ده چې د سپوږمۍ د کرې په باب محترمو لوستونکو ته معلومات وړاندې کړو:

د سپوږمۍ کره د شمسي نظام د (۳۰) سپوږمیانو له ډلې څخه ده د حرکت سرعت ئې په شمسي نظام کښې په ثانیه کښې (۳۰) کیلومتره او جسامت ئې د ځمکې د کرې په نسبت یو پر (۸۱) او حجم ئې په فضا کښې په ثانیه کښې یو پر (٤۰) دی.

وضعي حرکت ئې په (۷) ساعته او (٤۳۱) صحیح یو پر (٦) دقیقې او انتقالي حرکت ئې په (۲۷) ورځې (۷) ساعته او (٤۳) صحیح یو پر (٦) دقیقو کښې سر ته رسېږي شعاع ئې (۱۷۳٦) کیلو متره او سطح ئې د پورته او کښېتو څخه جوړه شوې او د زیاتو کندو درلونکې ده چې تر ټولو لویه کنده ئې (کوپرنیکس) نومېږي او د ځمکې له کرې څخه ئې فاصله په منځني توګه (۳۸٤٤٤۷) کیلو متره ده له دې امله چې اتموسفیر نه لري تل د آسماني ډبرو په وسیله بمبارد کېږي ددې بېلګې په مثال د داسي کندو موجودیت دی چې د آسماني ډبرو په صورت کښې منځ ته راغلي دي.

د سپوږمۍ کره په ځمکه کښې د مد او جذر د پیدا کېدو سبب شوې او هم د ځمکې د کرې پر کر هغه اغیزه لري.

«نور بیا»

پښتو کوونکی : عبدالرؤف «منصف»

# دالکول اغیزه پر مغز او اینه باندی

دا یو دوښیانه حقیقت دی چې اوس په امریکا کښې ۸۵ملیونه ځوانان ژوند کوی ۷۹ په سلو کښې نادینه او ۶۳ په سلو کښې ئې ښځې شراب څښی.

په امریکا کښې چې څوك ۱۸ کالو ته ورسیږی د شراب استعمالول ورته پروانه لری .

له تجربو څخه ښکاره شوی ده چې د الکول زیات مصرف په وجود کښې یوډول ضعیفی، نفس تنګی او بی غیرتی راولی .

فزیولوجستانو ثابته کړی ده چې له څه الکول هم دماغی مضر مرض او عصبانیت پیدا کولای شی .

دوی دا هم معلومه کړی ده چې د شرابیانو لوی او جذاب آوازونه خراب سویدی او عصبی سیستم ته ئې تاوانونه رسیدلی دی او د شرابو زیات مصرف ژوندی او فعال حجرات وژنی او یا ئې ډیر کمزوره کوی.

## غیر عادی حالت:

تر دې مطلب دمخه به دا خبره وڅیړو چې د شراب په خوړلو سرو څه پیښیږی :

کله چې یو څوك شراب یا داسی نور مشروب چې پر اعصابو اغیزه کوی وخوری ډیر ژر د بدن دغړو پر وظیفو تاثیر کوی.

دا مشروبات داسی غذا نه ده چې تر جذبیدو دمخه د هضم مرحلی تیرې کړی او نه په معده کښې تر ډیلو فشار او کشمکښلو لاندی راځی چې وروسته بایدوینی ته ننوزی او خپله اغیزه وښندی .

دمعدی دیوالونه ژر دا مشروبات جذبوی او د وینی سره ګډیږی وروسته دټول بدن غړو په تیره بیا اعصابو ته انتقال کوی او عصبی سیستم ته تاوان رسوی.

دمثال په ډول که یو سړی چې (۱۵۰) پونډه ئې وزن وی د لوډی په حال کښې دوه بوتله «بیر» وخوری

هغه اندازه الکول چې په وینه کښې ئې ګډیږی تقریباً (۵۰۰) په یوه فیصد کښې دی چې په دې صورت کښې د عادی فعالیت اندازه دمغز په حجراتو او د باندنیو برخو په بشپړډول له منځه ځی.

په دې حالت کښې دانسان څخه غیر عادی او غیر ارادی حرکتونه ښکاره کیږی چې موږ ئې نشه یولو خپل تنګ، خبری دستر کو حرکت دګوتو ردیږ دیده او دشونډانو رپیدنه ئې په دوك نه وی .

که معتاد د شرابو په څښلو کښې ډیر والی راولی او دا اندازه و لس زروته په یوه فیصد کښې ورسوی نو کار دې حد ته رسیږی چې معتاد د خپلو عضلو او عضوو کنټرول د لاسه ورکوی او که ئې مقدار و شل زروته په یوه فیصد کښې ورسوی نو د اعصابو لاندی برخه فلجیږی او انسان په اوږده خوب بیدیږی او زیاتره په ابدی خوب (مرګ) بدلیږی. دا څکه چې دالکولو په زیات مصرف دمغز او اعصابو ته ډیر سخت تاوان رسیږی او ګنسیت، سستی او رپی د پیدا کوی.

## دګیچی او پر ځان نه پوهیدلو حالت:

څنګه او ولی د الکولو څښل په پرله پسې ډول پر اعصابو او مغز خپل بد اثر ښندی؟ دې موضوع بوهان او فزیولوجستان د اندیښنی په سیمه کښې لاهو کړی او په پای کښې بسله ډیرو څیړنو اوس دادی دې نتیجی ته ورسیدل چې الکول په غیر مستقیم ډول دمغز پر ډیلو طبقو اغیزه کوی او دحجراتو وظیفه د اکسیجن په لږ یدو سره کمزوره او بالاخره له منځه ځی.

اوس به دا خبره وڅېړو چې الکول ولې په مغزو کښې اکسیجن لږوي او یا يې له منځه وړي ؟

پروفیسر «هلوین اچ کنیستلي» او ډاکتر «هربارت الي مانکاد» او «درا بماندسي ینيګټون» چې د (کرولینا) د پوهنتون استادان دي پدې باره کښې يې ژورې څېړنې کړي او زحمتونه يې ګاللي دي چې په نتیجه کښې يې زیات افتخارات ګټلي داسې وايي :

په یوه سالم او جوړ انسان کښې وینه له زړه څخه په عادي ډول په شریانو کښې بهیږي او دا شیریانونه چې د ویښتانو په ډول نري دي وظیفه لري چې د زړه څخه رسیدلې وینه د بدن ټولو نسجو او غړو ته ورسوي .

دوینې په دغو رګو کې دوینې «سرې حجرې» یا «سره کرویات» سته چې بايد د حجراتو او رګونو د ژوندي ساتلو د پاره یوه اندازه زیات اکسیجن په ځان کښې وساتي خو د الکول په استعمال د افعال او انفعال ورو ورو له منځه ځي او دا اغیزه تر هرڅه لومړی پر مغز ښکاره کیږي .

## ویسکي - سوډا او دسترګو تخم

په دغو حجراتو کښې داسې خاصیت پروت دی چې هغه سستي او د کیچې حالات کوم چې د شراب خوړلو په اثر پیدا سوي دي خو دا په هر ګند ډول پکښې ښکاره کیږي .

په ۱۹۴۰ کال کښې ډاکتر «کینسلي» داسې تجربه وکړه چې د یوه حیوان سترګې يې د الکول د څښلو په نسبت ورړندې کړې . ده دا موضوع چې الکول د سترګو دید لږوي په ناڅاپي ډول په تجربه پیدا کړه او بیا ډېرو تجربو وښودله دې نتیجې ته ورسید چې الکول د سترګې دپاره ډېر مضر او حتی ړندوي يې .

ډاکتر «ینټینګټون» یو (سوی) تر تجربې لاندې ونیو او یوه اندازه الکول يې ور پیچکاري کړه وي لیدل چې د سوي په سترګو کښې څنې تورتمکي، لکې یا خالونه ښکاره سوه چې ورو ورو ډېر بدل. څو هغه حجرې بلکل له منځه ولاړې .

نوموړي ډاکتر وروسته هغه انسانان چې الکول يې استعمالول تر تجربې لاندې ونیول او ډېرې څېړنې يې وکړې خو دې نتیجې ته ورسید: هغه کسان چې پسله شراب خوړلو نشه کیږي او د حجراتو یوه برخه يې له منځه ځي نو د اغیزې پر خپلو همسایه و حجراتو هم باندې شو هغه هم پسله څو مودې خرا بوي .

## متین فکر

یو زیات پروفیسران او ډاکتران چې نومان مې یاد کړه پسله تجربو څخه د حجراتو د له منځه تللو او د اکسیجن د لږوالي علت يې پیدا کړی دی .

د هغو کسانو مغز چې سن يې ډېر زوړ وي ۱۷ ملیونه حجرې لري .

که دا حجرې د الکول په استعمال له منځه ولاړې سي مغز قادر نه دی چې نوې حجرې د هغو په عوض کښې جوړې کړي که یو څو زره حجرې هم د بیرا ونورو الکولي مشروباتو په واسطه خرابې سي یو ډول ګډوډي په مغز او عصبي سیستم کښې پیدا کیږي .

اوس نو که د کاله څو څو زره حجرې د الکول په استعمال له منځه ولاړې سي او مغز نور نوې پیدا نه کړي نو دا تللو نکي ژوند د دغو کسانو به څنګه وي ؟

«د ډېر شراب استعمالونکو او هغو کسانو چې لږ خوري دا فرق دی چې لومړۍ ډله خپل مغز او سلامتي ډېر ژر دلاسه ورکوي او دوهمه ډله ورو ورو بايلي .

نو تجربو او څېړنو ښکاره کړې ده چې د الکول اغیزه پر مغز او (اینه) یو ډول دی د انسان (اینه) هم د الکول په استعمال له کاره لوېږي او په ډول ډول مرضو اخته کیږي .

هر وخت چې معتاد الکول وڅښي نو سمدستي د ده وجود د اکسیجن ته زیاته اړتیا لري او د تندې احساس کوي خو متاسفانه هغه اکسیجن چې د مغز او اینې د حجراتو د ژوندي ساتلو دپاره سته له منځه ځي او نور اکسیجن د نورو شرابو په واسطه نه تولیدیږي بلکه لا نسې لږیږي او لږیږي .

د الکول اغیزه پر مغز او اینه یو څه توپیر لري هغه دا دی چې : اینه پسله اوږدې مودې څخه کولای سي چې نور

(نور په ۹ مخ کی)

# د ګیل ښار چې د روحي ناروغانو د علاج له کبله زیات شهرت لري

د بلجیم د پای تخت د شمال ختیځ په پنځوس میلي کې د ګیل ښار پروت دی او په ظاهري لحاظ بلجیم د شمال د آبادو ښارونو سره توپیر نه لري ۲۹ زره تنه نفوس لري، د ګوتیک په سبک جوړه شوې لویه کلیسا چې د ښار په لوی میدان کې جوړه شوې ده خاصه ننداره لري او په ا ا خ کې یې بولېدونکي مغازې او عالي رستورانونه جوړ شوي دي، خو دغه ښار د معنی له پلوه د نورو ښارونو سره توپیر لري ځکه په ګیل کې ۱۷۰۰ تنه روحي او عصبي ناروغان چې په کورو کې ژوند کوي او په محلي

پېلو پېلو کورونو کې عادي او ورځنی ژوند تېروي. که دغه ښار دوی په غېږ کې نه وای نیولی، هغوی به د لېونیانو په مخصوصو روغتونونو کې ژوند کولای او د دیوه عادي او خانوادګي ژوند څخه به محروم وای.

په ګیل کې ناروغه ډېر کې خصوصي او معمولي ښوونځیو ته ځي او که داسې ناروغه وي چې ښوونځي ته نشي تلای د ښاروالۍ او د روحي روغتونونو له خوا د هغو کورونو ته مخصوص ښوونکي ورځي او هغوته درس وائي.

ناروغه ښځې د کور په چارو او ډېرو کو به روزنه لګیا دي او ناروغه نارینه په لویو مغازو او کروندو کې کار کوي، او پرته له جزئي مواردو څخه چې روحي ناروغه ښځې لېوني او یا ګې ښځې او لاسونه فلج او د کار له لویدلي وي او یا یې په بدن کې بو غړی د منځه تللی وي نو داسې ناروغان د ښار عادي کسان نه دي، هغوی مغازو ته د رانیولو او خرڅولو لپاره ځي او د ښار د هواخورۍ په سیمو کې ګشت کوي، سینما ته ځي او په ډېرو رستورانونو کې چې په هغه اړه لري پرته له الکل څخه نور شربتونه څښي او بلیارډ کوي. دیکشنبې په ورځو کې دغه روحي ناروغان خپلې غذاوې په رستورانونو کې خوري او په دې ډول دغه ناروغان د ټولنې د غړو په حیث پېژندل شوي دي.

(۹ مخ)

«د ۸ مخ پاته»

## د الکول اغېز ...

حجرات پیدا کې خو مغز په هیڅ ډول هغه کار کولای شي او نه یې امکان شته.

د ډاکټر (کینسلي) د ازموینو په اثر یو موضوع چې ډېره ارزښتناکه ده او د الکول د الاو د سختې پرېشانۍ سبب ګرځېدلی کشف کړې ده او وایي:

«په ډېر تاسف سره د اعلان کوم چې د الکول د استعمال په سبب پرسېږي پر مغز، اینې او اعصابو چې سخت ضرر رسوي زه هم د دې تاوان څخه نه دي خلاص او ورځ په ورځ یې کمزوري کوي او د زړه سکته هم له شرابو څخه پیدا کېږي»

پس، باید څه وکړو او څنګه تصمیم ونیسو؟

ایا د الکولو او شرابو په څښلو حاضر یاست چې د آ ټولې بیان شوي غیر عادي او تباه کوونکي حالات ومني؟

ایا راضي یاست چې مغز، زړه او اینه چې هر یو د یو لوی نعمت دی یو څو ګړو پو شرابو په څښلو بې سیکه او خراب کړي؟ یا هیڅکله نه ...

موږ د عالمانو او تجربه کارو له توصیو څخه باید کار واخلو او خپله روغتیا او سلامتي وساتو.

خو څنګه؟

یوازې او یوازې متین فکر، ټینګه اراده او قوي عزم دا کار کولای شي او بس.

ز. د ګرالو لوستونکو څخه هیله کوم چې په دې باره کې که کوم معلومات په لاس کې لري او یا یې په لاس ورځي د نورو د پوهې د زیاتولو له پاره یې ونه سپموي او خپله همکاري وکړي.

ستاسو د بریالیتوب د سرلوړي په هیله.

د ګیل ډېپارټ د روحي روغتون رئیس او د روحي ناروغانو د مخصوص پروګرام سرپرست او د ناروغانو د علاج مسئول سړی ډاکتر حرمان دی چې ناروغان یې د ټولنې د غړو په حیث منلي او د هغو سره داسې وضعیت کېږي، چې د اعصابو بل هیڅ ډاکتر یې نسي ورسره کولای.

د سوونو کلونو راهیسې دغه وضعیت د ګیل په ښار کښې کېږي او روحي ناروغانو ته پاملرنه یو لرغونی سنت دی او د ګیل خلکو د ۱۴۴۷ ع کال څخه د دغو ناروغانو په خدمت پیل کړی دی او ځینې روایتونه داسې وایي چې دا کار حتی د ۱۱۰۰ ع کال راهیسې دوام لري.

په دغه هکله یوه کیسه هم شته چې وایي په نهم قرن کښې د آیرلینډ حکمران ته داسې فکر پیدا شو چې د خپلې لور سره واده وکړي.

لور یې (دیمپنا) نومېدله، هر کله چې دغه خبر په ښار کښې خپور شو خلکو قول بد پروویل او هغه د خپل ښار څخه ګیل ته وتښتېدې او هلته یې بیا خپلې لور ته د واده پیشنهاد وکړ، خو دوهم ځل هم هغې دا خبره ونه منله.

پلار یې نا آرامه او غمه لیونی شو، لور یې ووژل او هوډ یې ټینګ کړه چې اوس یې هم خلک قبر ته ورځي او حتی لیونیان هم دغه قبر ته ورولي.

اوس چه په هر ښار کښې چا ته روحي پریشاني او لیونتوب پیښ شي ګیل ته یې استوي او د هغه ځای مهربانو او نوعدوست خلک دغه روحي ناروغان د نویو میلمنو په حیث مني او ډېره ښه رویه ورسره کوي او تر ننه ورځې پورې د ګیل په هرو شپږو کورونو کښې یو تن روحي ناروغه میلمه شته.

د هغه مو وویل چې په ګیل کښې د روحي ناروغیو روغتونونه شته، د روغتون منسوبین لیونیان کورنیو ته معرفي کوي او د هغه ناروغ د ساتنې د پاره د ورځې دوه سوه افغانۍ هغې کورنۍ ته ورکوي.

د هغو ناروغانو د پاره چې د خارجي هیوادونو څخه ګیل ته ورځي د ګیل د ښاروالۍ انجمن خاص مقررات منځ ته راایستلي دي او د میاشتې یو ټاکلی فیس د هغو د اولیاؤ څخه اخلي.

دغه روغتونونه چې روحي ناروغان کورنیو ته د سپارلو په دغه ترڅ کښې صحي لارښوونې هم ورته کوي غذائي رژیم ورښئي، دواوي ورکوي څو چې هغه ناروغ جوړ شي.

اوس د ګیل د ښار ځینې کورنۍ په دغه کار کښې ډېر ټینګ شوي دي او د نویو ناروغانو د پرستارۍ او علاج د پاره ډېرې مشکلات نلري او ښه پوهېږي چې په څه ډول د بېلو بېلو روحي ناروغانو تداوي او علاج وکړي.

یو له دغو کورنیو څخه پیترز او پلار یې د جانسن کورنۍ ده او په دغو کورنیو کښې زیات ناروغان جوړ شوي او اوس په ګیل کښې په بېلو بېلو چارو بوخت او خپل ژوند په ښه توګه تامینوي.

دغه کورنۍ د روحي ناروغانو ساتنه، پرستاري او علاج په داوطلبانه توګه پر ذمه اخلي او دغه خطرناکه وظیفه په بریالیتوب سرته رسوي او په دې ډول بشریت ته لوی خدمت کوي.

د اعصابو نامتو بلجیکی ډاکتر او د روح پېژندونکی ډکتر جان شریزر معتقد دی چې د ګیل کورنۍ د روحي ناروغانو منل د ځان د پاره یو مناسب فرصت او امتیاز ګڼي، د دغه ښار یوه بله نامتو کورنۍ (وونزر) نومېږي او یو تن یې د مهندسۍ شغل لري او دوه تنه روحي ناروغان د شپږو کالو راهیسې په کور کښې ورسره دي.

د دغه کورنۍ غړی وایي:

هر کله چې موږ د کار د پاره د باندې ولاړ شو او ماشومان او انجونې مو په ښوونځیو کښې په درس لګیا وي خو بیا هم زموږ کورنۍ خالي نه دي او دغه روحي ناروغان کور ساتي.

( په ۱۲ مخ کښې)

د محمد عظیم هوشمند څیړنه او لیکنه:

# شیزوفرني
## یا
# دځوانۍ لیونتوب

(شیزوفرني) یوه داسې روحي ناروغي ده چې د ځوانۍ په لیونتوب تعبیر شویده.

(شیزوفرني) د ځوانانو د افکارو فاسدونکې او پریشانونکې ناروغي ده. چې زیاتره په ټولو افکارو موځایو کښې نفوذ کوي

لومړنۍ نښې ئې په روحي قواؤ او په ورو دقیقو، احساسو، مغزي قواوو کښې څرګندیږي او د ځوانانو په افکارو کښې ډیرې خطرناکې ګډوډۍ او اغتشاش منځ ته راولي.

دا ناروغي لومړی پلا په هغو حیاتي قواوو لکه غریزه، دابتکار قوه، داستدلال قوه او ورو ورو په عقلي مظاهرو تأثیر کوي او بیا په بل پسې دیوه ځوان د فکرې جوړښت اساس ګډوډ او لاندې باندې کوي.

دا ناروغي د ډیرو پخوا زمانو راهیسې پیژندل شوې او تل ترڅیړنې او مطالعې لاندې نیول شویده. خو تر اوسه لاهم د ډېرو څیړنو سره سره ددې ناروغۍ اصلي علت نه دی څرګند شوی.

پوهان چې هر څومره دغه ناروغي ترژورې مطالعې لاندې نیسي، نو لاهم دغې د پیچومو سره مخامخ کیږي.

دا ناروغي عموماً په ټولو او مختلفو ځایو کښې پر ځوانانو باندې اغیزه کوي.

## د ۱۵ کلنۍ څخه بیا تر ۲۵ کلنۍ پورې:

دشیزو فرني ناروغي معمولاً د ۱۵ کلنۍ څخه بیا تر ۲۵ کلنۍ پورې څرګندیږي.

ډاکټرانو داتشخیص کړیدی چې قول هغه ناروغان چې وروسته له ۳۰ کلنۍ څخه ئې و ډاکټرانو ته مراجعه کړیده نو موږدې مراجعینو په دمخنیو کلو کښې یې دې ناروغۍ اخته شوي ؤ. خو څرنګه چې ددې ناروغۍ نښې لږ دي، نو ځکه دهغوی لیونتوب دونه پاملرنه ځانته اړولې نه وه، ځکه دا نتیجه اخلو چې موږ زیاتره تر یوې اندازې پورې د ځوانۍ په لیونتوب اخته شوي یو، یا اخته کیږو.

شیزوفرني په ابتدا کښې په بیلو بیلو څرګندیږي، په لاندې ډول ئې څو شکله بیانوو:

## فعاله قواوې کمزورې کیږي:

په دې ډول چې په یوه ګله ځوانانو کښې د خوی او خصلت او د روحي تغیراتو په شکل دا ناروغي شروع کیږي. پدې دوره کښې دوی فعاله قواوې له لاسه ورکوي په تنبلۍ، بیکارۍ او بې علاقه توب اخته کیږي. او کراره کراره له ټولنې، کورنۍ، او هرډول مجلس څخه تېښتې تنهایی او یوازې والي خوښوي.

دا ډله ځوانان پر له پسې لږ ماتې سره مخامخ کیږي. او له هرې ماتې سره ئې لیونتوب پیاوړی کیږي. پدې وخت کښې ځان ښودنه، کمزوري، بې ارزښته او ډیټ شعیري، او ځیله ځان ترټي. چې تقریباً په سل کښې ۲۳ ځوانان پدې ډول ناروغۍ اخته کیږي.

## دیوه ځوان اعتراف:

یو روانشناس ډاکټر وایی چې یو ځوان د شیزوفرنۍ په ناروغۍ اخته ؤ ماته ئې وویل:

نه پوهیږم ولې عوض شوی یم. د هیڅ شي او هیڅ پرمختګ سره علاقه نه لرم نه باید ځان مې کم، دا د روحي ضعف نور د زغملو وړ نه دی.

### وسوسه:

دځوانانو په وسوسه، شک او تردید باندې اخته کیږي. او دستړتیا او یو ډول بې نظمۍ احساس کوي.

### د ځوانۍ دلیونتوب (شیزوفرنۍ) پله مقدمه:

دځوانۍ لیونتوب په ځینو ځوانانو کښې ډېر تېره بیا په نجونو کښې دژیات زړه سوی وړ دی چې په سلیقه او په مزاج کښې بې بدلون راځي هرکړي د عشق احساس کوي، بې ځایه عواطف او احساسات څرګندوي.

دغه ډله ځوانان دهري عادي واقعې په وخت کښې سمدستي ډېر خوابدي او یا ډېر خوشحاله کیږي ددي ممکن دی بیله کومې مقدمې څخه پر یوې تجلي او یا هلک باندې زړه بایلي او مینان شي او سمدستي یو دبله د واده خوښتنه وکړي.

بدې برخه کښې باید وویل شي چې مور او پلار باید ډېر جدي او محتاطه واوسي. ځکه که بدې ترتیب سره واده صورت مومي ډېر امکان لري چې دواده په لمړي نیو شپو کښې دهلک مینه د نجلي په نسبت ډېره لږه شي.

بیله دې چې کوم علت یا دلیل ولري.

دښتیا هم که چیري مور او پلار ددې لیونتوب چاره په شروع کښې ونه کړي، نو ډېر بد عواقب او شوم سرنوشت به د ناروغ په برخه شي.

### دشیزوفرنی (دځوانۍ د لیونتوب) دریمه مقدمه

هغه کسان چې بدې ناروغۍ اخته کیږي مخصوص تحریکات سرته رسوي.

مثلاً هغوی بې ځایه خاندي او بې اختیاره ژاړي ددوی ژړا او خندا، زیاتره یوځای او پرله پسې وي.

دوی بې علته په فعالیت شروع کوي له کوټې څخه د باندې تښتي بې ځایه خپل ټول کالي کاږي او ایسته یې غـــورځوي. او لغړ لغړ ګرځي. کله خپل لباس څیري، کله بیا مستانه رقصیږي او جانانه غزلې وایي.

کله بیا دنورو خبري تکراروي، او یا په څنګنځلو پیل کوي.

کله کله بیا د دې ناروغۍ شروع او مقدمه په ځوانانو کې په سکوت، کراری، او چپ والي سره شروع کیږي. دجسمي او روحي تحریک نشتوالی ددې ناروغۍ دشروع کیدو علامه ده.

### ناروغ چپ او ساکت اوسي:

بدې دوره کښې ناروغ، بې سببه یوځای دریږي او حیران پاتیږي. ددوي ډېرخوځښت هم شي. کله بیا حتی دحاجت دفع کولو ته هم نه ځي او سهي فکر کوي چې دحرکت قوه او دځان ساتنې کنټرول او اخرین دمې له لاسه ورکړی دی، نو مونږ ناروغ، کوښه نشیني اختیاروي او ژوند یې دنیا ته تونږوند ته ډېروړ دوي. خو داحالت ډېر دوام نه کوي، چې نابیره بر خلاف ددې حالت، یو ازداپاڅیږي، او په هغه ستا او بابل کار باندې پیل کوي.

(بای)

(د ۱۰ مخ پاتې)

## دګیل ښارچې ...

په هرصورت دګیل چاد اوس دیوي ژباني موددې راهیسې دنړۍ دروحي ناروغانو او لونیانو دپاره ډېر عالي ځای جنت دی او دنړۍ دهر کوټ څخه ډلې ډلې ناروغان د آیرلنډ د حکمران دلورد دپیمپنا دقبر دلیدلو او علاج دپاره ورته راځي او جوړیږي او بیرته خپلو هیوادونو ته روغ رمټ ځي خود ګیل دخلکو مهربانۍ او میلمه پالنه دتل لپاره دهغوی سره وي.

(بای)

## دفکر پانګه

دفکر او روحي ټوله پانګه باید یوه روحي او اخلاقي عظمت ته تسلیم شي.

پښتو کونکي عبدالصمد نصرخوا:                                تاریخي:

# کابل په تېرو تاریخي دورو کښې

کابل د خپل قدامت له مخې ډېر تاریخي دورې او پېښې لیدلې دي د کابل مساحت په تېرو

تاریخي دورو کښې کله لوی او کله به کوچنی ؤ یعنې هغه وخت چې به د یوه ایالت په شکل سره و

محدود به ئې هم محدوده او کله چې به ئې د یوه پایتخت شکل غوره کړ نو هغه وخت به ئې

مساحت پراخ شو او ډوله مفتوحه ځمکې به د کابل د سلطنت په نامه یاد کابلستان په نامه یادېدلې.

په عمومي ډول په تېرو وختونو کښې د کابل څلور خواوې پدې ډول وې:

د ختیځ لورته ئې د سیند دریاب د لویدیځ لورته ئې غور بند د شمال خواته ئې اند راب او د جنوب

خواته ئې گردېز ؤ کابل په تېرو پېړیو کښې د او سني بگرام پر ځای آباد ؤ او خپل مدنیتونه

ئې هم هلته تېر کړي دي خو دا نه ده معلومه چې د پخواني ځای څخه ؤ او سني ځای ته څه وخت او په څه

سبب د انتقال شو صرف د ونه ویلای شو چې دغه د انتقال کېده شاید د «مقدوني سکندر» او «تـو رامان» د سختو یرغلونـو لـه امله منځته

راغلی وي د لرغوني کابل ؤ سس نه دی معلوم او نه د هغو څخه نښې پاته دي او دا هم نه معلومېږي چې په تېرو دورو

کښې ئې مدنیت تر کومه ځایه رسیدلی ؤ په هر حال دا معلومه ده چې کابل د خپل موجودیت د وخت څخه د ختیځ یو مهم

مرکز ؤ او تر هغه وخته پورې چې بحري لارې سمې نه وې د چین، هند او خراسان مالونه ډوله کابل ته د انتقال او د دغه

ځای څخه بیا ایران، آسیای صغیر او اروپا ته وړل کېدل.

«هیرودوت» د یونان نامتو مؤرخ په (٤٨٤، ٤٠٦، ق، م) کښې هم د کابل د

تجارتي مالونو یادونه د یونان او روم په بازارونو کښې کړېده که څه هم کابل په تېرو دورو کښې ډېرې خرابۍ

لیدلې دي او ډېرې لړې پکښې پېښې شوېدي خو بیا هم خپل تجارتي د ریځ ئې له لاسه نه دی ورکړی او په هر وخت کښې به ئې تجارتي تو د بازار درلود د امیر معاویه [رض] په زماني کښې د کابل

د یوې ورځې په بازار کښې د اتو لکو دینارو په قیمت نیل د انیول شوېدی حتی د دغه بازار د نیلو خرڅلاؤ په

ځینو وختونو کښې ورځو ملیونو ته هم رسیدلی دی.

(ظهیرالدین محمد بابر) د تجارت او زراعت په هکله په خپل (تزک) کی داسې لیکلي دي: د خراسان، روم، بابل او چین ډوله

شیان په کابل کښې پیدا کیږي او دغه مالیه اتـه لکه شاهرخۍ ده چې هره شاهرخۍ د یوه مثقال سپینو زرو سره برابر ده.

د پنجشیر د سپینو زرو په کان کښې چې د ډېرو لومړنیو کلو څخه کار پکښې شوېدی ډېرو تېرو پاچاهانو د خپلو ضرابخانو لپاره کار څنې اخستی دی او د هغه د خالصې نقرې په مصرفولو کې ئې سپما نه ده کړې.

کابل په زړه پورې کښې یو د مهمو ښارونو څخه دی او په خپل قدرت کی د بلخ، بامیان حتی د نینوا، او بابل سره سیالي کوي.

[۱] (وداس کتاب Vedas) چې تقریباً ۱۲ پېړۍ تر میلاد دمخه

پاته په ۲۰ مخ کې

---

[۱] «ویدا» د (وید) د کلمې څخه اخستل شوېده او معنی ئې پوهنه ده برهمني مذهب هم ۱۱ پېړۍ تر میلاد دمخه د (ویدي) د مذهب څخه اخستل شوی دی چې مذهبي مقدس کتاب ئې (ویدا) دی.

دغه ویدي د مذهب قوم چې آرین دی د (گنگا) په شاوخوا کښې ژوند کاوه هلته د (بنارس) ښار آباد کی او هغه ئې د آسمان دروازه بللی.



مرتب او تهیه کوونکی: ایوبزی

خوشحال خټک: پخوانی ادب:

## ژیړه گله

چې دا هسې ښایسته یې ژیړه گله
ځکه تا به ځان شیدا کړله بلبله
چې یې تور داستا د تورو زلفو وا خیست
ځکه بوی د مېړنه ځې له سنبله
دسرو شنډو بوسه بیاور کړه مشتاق ته
چې مستي یې لا اثر وکړي تر مله
دا شه ښکلي وژلي گوره په خپل وده کښې
په غمزو په خرښو په تغافله
چې د خلکو له نظره په امان دي
همیشه ور باندې لولم ځلور قله
اکه یار داسره ژبه هغه شان دی
په چې بیا دی مختور دی و شوه چغله
لا به گله سر زما په غیږ کښې کښېږدی
په د مشکو بوي دي د دو مي له کا کله
درست عالم دی په خوشحال باندې غوغا کا
باز پر وا کاد کار کانو له غلغله؟

## د نورو متلونه

هر څوک چې په میلمستیا کښې عصبي شي هغه بې ادبه دی. (ایټالوی)

سپی، مچ، او بې ادبه سړی میلمستیا ته نا بللي ځي. (انګلیسی)

احمق میلمستیا ور کوی او هوښیار له هغه څخه لذت اخلي. (یونانی)

سلیمان لایق: نوی ادب:

## د ښکلو عشق

ما له دې نړۍ نه انتخاب که عشق د ښکلو
شرم دی انسان ته چې مین نه وی په گلو

زه به هر ذره کښې د جانان تجلي وینم
ځکه یو شان ځیریم سپین او تور ته په کتلو
هر آواز چه پورته زما له خولې شو به مستي کې
خوله دا باندې ما ته محتسب کړه په وهلو

نه ځې په د ښکلو له زندانو شور د مینې
غلې په منصور کښې مستي نه شوه په وژلو

دا دژوندون دروی هسې نه دی چې آرام شي
بو خت دی زاهد د خپل ابرو په خرڅولو

---

## د ډرانده شاعر نغمه

زړه مې ما شوم نه و سپا ره یو ساعت یې د لو بغا ړی په څیر و د سره لو بې وکړه او بیا یې لیرې و غور ځاوه.

یو بیغلې ته مې و ډ اندې کړ هغې د نورو زړونو په څوا کښې چې دا قول کړی وو بې پروا کښېښود او له یاده یې و یوست.

یو ښځې ته مې و ډ اندې کړ به بلقنه یې بېل و کړ خو چې د نورو ښځو ځای یې پکښې و مو ند په بې مهرۍ او جفا یې له ځانه لیرې و غور ځاوه.

یو ځوړ ته مې و سپا ره په ژړا یې د زړه پر سر کښېښود او ځای یې و نه و یل.

هغه مې د خوښۍ او خوشحالۍ تر منځ پریښود یو څه وخت حیران پاته شو.

هغه مې به خپله خوښه آزاد پریښو د لېژ څه خوښۍ یې ښکاره کړه آخ گله چې مې هغه د یو ه لا روی په لاس کښې ور کړ د مینې یوه نغمه شوه کله چې مې یوه جنگیا لی ته و ډ اندې کړ د تورې ځېره یې ځان غوره کړه او هغه وخت چې مې یو دا کتر ته و باخښه دا و ښکو یوه روانه قطره شوه او به آخر کښې یې به چغو او زاریو لاس یو دی کړ.

د نوي ادب:

د شکسپیر اثر:

# ستامینه

هیڅوک ښکلې نه ده خو ستا مینه ښکلې ده، هیڅوک ماهره نه ده خو ستا مینه په ډېر مهارت
او چالاکۍ.

هیڅوک په ثروت او بېوزلۍ نه ده، هیڅوک په ډېر زور او قوت .
هر کله په ښکلو کالو، جامو ویاړي او هر کله ښایسته، قد او

اندام، او مخ ډېر ښکلی دی په آس .

دا ټول له مزیت او خوږوالي څخه ډک دي خو ستا مینه هم له دې
ډېره او هیڅ کله یې هم دومره لري .

ستا مینه ماته تر لوړ منصب او نژادوالي، تر ثروت او بېوزلۍ
گران بها او تر فاخره کالو او ښکلو لباسو نفیسه ده. ستا په مینه
تر آس ډېر نازېږم او چې تا وینم د ټول عالم تر خلکو خوشحال یم

یوازې همدا یو ډار لرم چې ته به خپله مینه بېرته
راڅخه واخلې او زما حال به تباه او زوند به مې تلوار دکړي .

---



محمد انور مسکین یار:

## خپل مې نه ښي

چې په دردمې دردمن نه ښي خپل مې نه ښي
چې په هومي خرسند نه ښي خپل مې نه ښي

که اعلان د عقل ژهوښ کړي به څو رنگه
زما په شان کښې هوشمند نه ښي خپل مې نه ښي

مزین په که تقریر او په تحریر شي
صداقت کښې څرگند نه ښي خپل مې نه ښي

که شیرین تر قند خوشبویه تر گلاب ښي
دزړه دردته گل قند نه ښي خپل مې نه ښي

د وجدان په قضاوت تفهیم شا ښي
آمضره سو دمند نه ښي خپل مې نه ښي
فلسفه د صحیح خلکــــو د ده ورکه
د معنی اوږدمند نه ښي خپل مې نه ښي

ستا هنر سو مداحې په ډېر مرام کښې
حقیقي هنرمند نه ښي خپل مې نه ښي

تورتو بس که مستعد سوي عاقیده
وخدمت ته پسند نه ښي خپل مې نه ښي

اعتماد دزړه پرتا امر محال دی
بند په عهد وسو گند نه ښي خپل مې نه ښي

په امید ستا (مسکین یار) تر پخوا خوار دی
ته په هیڅ شرم بند نه ښي خپل مې نه ښي

عبد الاحد سپین مل:

د لبنکر کلاه نه و الپیرنه:

## دوېبارگه

کاغذ که دویباد که واوده یې
یې په ښه یار ته ورشه په باکې
اول و وایه سلام یې په ښه خیوله
له یې د ژره څو که غبرته کړي به کرې
په خندا خندا گیله کړه ورته تیره
غبرته ښي د آشنا په سپیره څې
د آشنا دخولې آه وته دي ساده
ستا څو بوته دي د ناز پر چپر کې
څه عجبه خاموشي ښه چو پتیاده
یکتنها د استا په غم کښې لې برلې
څو چې مل د اسره مل په سپینه لاردی
څو که په څه کوي (سپین مل) ته خبر څې
لکه چې چې د چقاتو په قطار مې
سپین مل هم دی په چقاتو پسې چې

مصاحبه کوونکی «طالب» : زموږ د شاعرانو پېژندنه :

# سید عبدالخالق «صادق»

د کندهار د عوامي ادب یو نکېږه شاعر ښاغلی سید عبدالخالق چې تخلص یې (صادق) دی یو آرام او خوش خویه ځوان معلومېږي چې عمر یې ۲۸ کالو ته رسېږي خو تر اوسه دواده ښېښتن سوی نه دی .

ده لس کاله ښوونځی ویلی او اوس هم د دیني علومو په زده کړه بوخت دی بدې توګه نوموړی پیله دیني علومو زده کړې څخه پله‌ونده نه لري .

ښاغلی (صادق) د ویناسره سم ده د اته کلنۍ څخه په شعر او شاعرۍ شروع کړې‌ده او دده د شعر ویلو محرك د ځینو شاعرانو د دیوانو مطالعه ګڼل کېږي .

دی وایي چې زه د کوچنیوالي نه د خوشحال‌خان، رحمان بابا، حمید ماشوخیل او د پیرمحمد کاکړ له اشعار وسره زیاته مینه‌لرم او دغه کار زما د شعر ویلو سبب شو .

خو له‌دې نه‌هم باید انکار ونه کړو چې شعر د عشقي جذبې نه خالي نه دی .

ښاغلی (صادق) په شعر ویلو کښې ځان د حمید ماشوخیل او پیرمحمد کاکړ د سبك پیرو ګڼي او له‌دې امله دغو د اشعار وسره ډېره مینه لري .

خو په ژوندیو شاعرانو کښې د کندهار د مولوي عبدالغفار (بریالی) شعر زیات خوښوي او ښاغلی (بریالی) د پښتو د بیدل په نامه بولي .

ښاغلی (صادق) وایي چې :

د (همیشه بهار) په‌نامه زما یو دیوان چې د دوو زرو غزلو درلودونکی دی چاپ‌سوی‌دی او‌هم ځلور نور دغسې کتابونه لرم چې تراوسه چاپ شوي نه دي .



سید عبدالخالق (صادق)

د ښاغلي (صادق) اشعار نه یوازي عشقي بڼه لري بلکې دیني اخلاقي او اجتماعي بڼه هم لري .

څرنګه‌چې (صادق) د محلي شوقي هنرمندانو سره زیات سروکار لري، نو د هغو د پاره د هندي دیکارډو پر طرز برابر شعر جوړوي او بدې‌لار کښې د بوده مهارت څښتن دی .

دا هم باید ووېل شي چې دی زیاتره کمپوزونه په ځپله کوي او په مقام پېژندنه کښې ښه‌لاس لري او بدې لار کښې یې زیات شاګردان روزلي دي چې دده د تکړه شاګردانو څخه ولي محمد او شاه محمد کندهاري په مثال راوړای شو .

ښاغلی عبدالخالق د کندهار په شوقیانو کښې د نوموړو دوو تنو د آوازونو سره زیاته علاقه لري ، خو د کابل راډیو په هنرمندانو کښې دده د وینا سره سم په کلاسیك موسیقي کښې د استاد سرآهنګ او په لایټ موسیقي کې د ښاغلي ناشناس او خیال د آوازونو سره زیاته علاقه لري .

د هنر د پراختیا په باب ښاغلی (صادق) عقیده لري چې باید په ولایاتو کښې هنري کورسونه جوړ شي څو په ولایاتو (په ۱۸۹ مخ کښې)

دایو بزی ژباړه :

# دخلکو
# او
# طبیعت شاعر

لامارتین دفرانسې داد بیاتو څلانده او بیژندل‌شوی شهره دئ په ۱۷۹۰ع‌سوی کال دماکون په ښار کښې وزیږیدی دوه کتوب څخه دطبیعت په ښکلاؤمین شو او دطبیعت سره‌مینه کوله او دغه وسوسه اچونکی طبیعت ؤ چې وروسته تر هغه د بهترینو شعرونو اونغمو په‌منبع ته‌راتلو کښې دشاعر دالهام منبع وگرزیدله او خپل جاویدانی آثار ئې د ټیرې د ادبی میناتوته‌وړاندې کړل .

واقعاً لامارتین دخلکو او طبیعت‌شاعر ؤ ځکه چې ددغه ستر او دوشگاف شاعر د آثارو سره آشنائی لرې ښه‌پوهیږی چې جاویدانی ترانی ئې څه ډول د سوزونکو او ښو احساساتو ښکارندوی دی چې دهر ځوان په‌زړه کښې پټ دی او قدرت نه لري دهغه‌حقیقتونو ته ځرگند کړي .

لامارتین دځوانی په‌وخت کښې لیون ته ولاړی او په‌ذده کړه ئې پیل وکړ او دخپل عصر پوهنه ئې واخستله او بربالی شو چې د پوهنې دخاوندانو او دهغو دکتابونو سره آشنا شي .

اوه‌ویشت کلن ؤ چې دیوې ښکلی ښځې «ژولی شارل» سره مخامخ او پرهغې‌مین‌شو، شاعر نو دغو له کاروته پرېښودل او هغې ته متوجه شو او څه وخت‌وروسته ئې ښکلی ښځې دسل په په‌ناروغی مړه‌شوه اولامارتین ئې دمرګ تر‌پایه پورې په‌خپل بیلتون سخت غمگین کړ .

پدې‌وخت کښې شاعر د ډېر لوی غم څخه‌خپل بوتراجیدی اثر (شاعول) چې ددغه دغمگین روح نمایندگی ئې کوله میدان ته راوایست .

دلامارتین له‌سترو آثارو څخه (شاعرانه تفکرات) دی په دغه‌اثر کښې دده طغیانی احساسات ښه‌مجسم شوی دي او جملې ئې دداسې غمگینو سوداؤ او اندیښنو څخه ډکې دی چې دیوه دردمند زړه څخه‌راوتلی دي او داسې شکایتونه‌دي چې یو حساس اود شوده ډکه‌زړه ئې دطبیعت څخه کوی ددغو غمگینو تفکراتو یوه برخه‌داده :

«زموږ دژوند لمر چې راپورته سوی نه‌دی لوېږی ، او دمرگ تیاره راتږدې کیږي او ددغه‌څلانده لمر څخه زموږ په‌داغیدلی تندی برته‌له لږ زیدلی او کمرنگه پلوشو څخه چې لکه دژوند وروستنی لحظی‌سېدی او دغه‌نکی دی پل‌څه رڼانه کوی لکه دغه‌وړانگه چې غواړی ددغې تیارې شپې سره وجنګیږي او هغه له‌منځه یوسی ، خو بده‌مرغه شپه‌رارسیږی او ورځ پای ته رسیږي .

څو کله دی چې له‌لیری څخه پر دغه‌غمناک غروب‌نظر واچوی او زړه ئې ونه لړزیږي ؟

څو کله دی چې دغه‌دردناکه سرنوشت ته‌و گوری او ځان دهغه دپیر بدونکی کندې څخه لیرې نه کړي .

ای فناوو نیستی سلام پرتا، ای آسمانی نجات ور کوونکې ، ای د ابدیت دوره ساتونکې ، ته‌دهستی پیغام ئې چې مهربانه خدای دمهر او هیلی دپیغام د رسولو دپاره ئې وا لوته رالیږلې ئې د ته‌دهستی لارښوونکی

ئې چې دنړۍ موجودات دژوند له‌تیاره وات‌څخه‌لیرې کوی او د ابدیت رڼا او پاکی‌ځینې ته‌ئې بیائې .

ستا وظیفه هیڅکله نابود کول نه دي ته دانسانانو آزادي بخښونکی هستي یې .

په هغه وخت کښې چې زما ستړی سترګی د ژړا له لیدلو څخه پټې شي ستاستر قدرت دا ورسیږي او هغه ستا دځلیدونکی او ستر لمر

پر مخ خلاصې کړي دهیلی فرشته وژړوته خلاص او نماللاس ونیسي او دغاود له تنګه او تیاره ګوټ

څخه مې سحر آمیزې دنیا ته بیایې» .

دلامارتین ښکلی جمله دده په ستر و اثرونو کښې دبشرد روح دسختو او تماشاتو ژبړه ونکی دي بریالی شوی دی انساني

احساسات په زړه وړونکی ډول څرګند کړي چې بل چا داسې نه دي کړي .

لامارتین فیلسوف نه دی بلکه یو داسې روح دی چې خپل اختیار ژوړ او ناپایه غم ته بخښلی دی

هر کله چې د سوی زړه خاوندان دده دشودو ډکې نغمې وایي ورته څرګند یږي چې څه ډول

قدرت او عظمت دده په موزونو جملو کښې پروت دی او دغه ښکلي او زړه وړونکی کلمې په زړو

زړونه په جوش راولي او دزړونو تارونه لړزوي .

دلامارتین ترمړینې وروسته یې خپلوانو ولیکل: دی به داسې وخت کښې دنیا ته راغی چې سخت روحي بحران پر ټولو غلبه کړی

وه، پر له پسې ناملایمات او ستړیاوی چې دنړیا توجګړو او انقلابونو نتیجه وه دخلکو روح یې غمګین

کړی ؤ، ټولو انتظار ایستی چې یو څوک پیدا شي چې دغه غم ورته بیان کړي څو چې په آزادانه

توګه یې پر مقدم او ښکلی پرتوی کړي . نو هغه ؤ چې لامارتین پیدا شو او دا کار یې وکړ .

لامارتین دفرانسې یو لوی رومانتیست شاعر دی، په حقیقت کښې دده په ځلیدو سره په فرانسه

کښې واقعي رومانتیسم شروع شو او تر ده وروسته بل شاعر دده په څیر پیدا نه شو چې دلامارتین

غونډې ښکلي او سحر آمیزه آثار ولري .

دلامارتین په عقیده شعر یعني کامله ژبه او حقیقي شعر دیو ښکي شخصیت څخه ته جذبوی او تعقل قوت یې دذهن څخه لیری کول

او دده روح د آسماني جذبې څخه څخه تصرف کوي او غوړته یې لکه دساز د آهنګ په شان نوازش

ور کوي او دتخیل قدرت یې په پرواز راولي .

(د ۱٦ مخ پاته)

## سید عبدالخالق ...

کښې هم هغه استعداد وته ورونژل شي چې تر اوسه محروم پاته دي. دده د کلام د نمونې دپاره به دده هغه شعر چې دخوشحال خان دشعر په سبک یې ویلی دي راوړو کوم چې وایي:

### دجانان کاغذ

(تورې چې تیرېږي څو ګلدار لره که نه؟
زلفې چې ولولې څو خپل یار لره که نه)

☆☆☆

سترګې چې تورېږي د ژړو ښکار لره که نه
غم چې پیدا یږي غمګسار لره که نه ؟
حال چې دخپل زړه څوک په دنیا کې بل ته وایي
څې به د منصور په شان و دار لره که نه ؟
څوک به وماخوارته نن کاغذ دجانان راوړي
روي دیاردي نیسم ورو بیاد لره که نه ؟
ژړام په سر وسترګو هر ولې ادمو لوی ته
وړمه د نظر ته و یند دلدار لره که نه ؟
ولې دي بې نیازه په حجاب مخ راڅه پټ کې
ما چې دلبر غوښتی و دیدار لره که نه ؟
خدایه ما عبدالخالق و یارته ورپیاد کړې
ژړمه د څو به حسن دار لـــره که نه ؟

# څه ډول خپلې ستړیاوې

## کمولای شو؟

غالباً د داسې کسانو سره مخامخ کیږو چې په ډېرو کو ناملایماتو ځان بایلي او عصباني کیږي، دغه سخت عصبانیت او غمګین روح د کاملې روحي ستړیا نښه ده.

ستړیا څه شي ده؟ څه ډول دهغه سره مبارزه کولای شو او بالاخره بدې دفشني او آشوبونه چې که دنیا کښې چې روح او بدن ته سخت تکلیف او فشار ورکوي څه ډول لرې شته چې د هغه مخنیوي وشي؟ بې له شکه هغه ډېره مهمه مسأله چې ډاکټرانو، روح پېژندونکو او پوهانو پام ئې دا اړولی دی هغه دستړیا مسأله ده.

ډېرو لږ هغو کسانو چې په دغه هکله څېړنې کړي دي، هغوی بدې عقیده دي چې ستړیا یو پېچلې بدیده ده او هرڅوک هغه ته په خاصه توګه ګوري او په نتیجه کښې ئې اغېزه هم فرق لري.

زیاتره روح پېژندونکي معتقد دي چې ستړیا په هغه ډول چې تصور ئې کیږي وجود نه لري او بدې کښې هم شك نشته چې ستړیا په بیلو بیلو ډولونو ویشل کیږي

ډاکټران وائي چې ستړیا دکار دمحیط د نه مساعدت له کبله ده او یا دا چې کار دانسان څخه زیات خوږ او څیږنه غواړي، مثلاً ځېنې کار ګران د کار له پلوه مختصري دندې لري چې د هغو د اجرا کولو له کبله ستړیا منځ ته نه راځي او دا ځکه چې دهغو کار د فکر دقت او تمرکز ایجابوي هغه فکري کار د انسان اعصابو ساړه ستړې کوي او دا ځکه چې بدې عصر کښې کارخانې او فابریکې د ښارونو څخه لیرې جوړې شوې دي او څوساعته وخت نیسي چې کارګران خپلو کارونو ته حاضر شي. دغه تګ راتګ هم یو څه ستړیا راولي.

ځېنې پوهان بدې عقیده دي هغه ستړیا چې د بدني کار له کبله منځ ته راځي او له هغه څخه روحي ستړیا هم پېښېږي له منځه تلای شي خو بیا هم بېځې نه ورکیږي او په نامرئي ستړیا سره بدلیږي او دا انسان روح په عذاب وي او دغه حالت خطر لري.

دسل نارو غان که څه هم په بستر کښې آرام پراته وي او کار نلري خو بیا هم روحي ناآرامي حسوي په دغسې کسانو کښې ستړیا د بیکارۍ او لقي څخه پیدا کیږي او هغه د انزوا او یواځیتوب څخه منځ ته راځي.

هغه مامورین چې مجبوره دي تیلفون ته پرله پسې جواب ورائي او د تیلفون د زنګ ږغ هغو ته اذیت رسوي غالباً د زیاتې ستړیا او نورو ناروغیو لکه د معدې ټپ او د زړه د ناروغۍ سره مخامخ کیږي.

ډاکټران وائي: هغه کسان چې د یو نواخت او پرته له مسئولیت نه کارونو څخه ستړي کیږي، ستړیا ئې ډېره سخته ده او باید متخصص ډاکټر ته ورشي.

دهغو څېړنو څخه چې پدغه هکله شوېدي داسې څرګندیږي چې ستړیا خارجي علت لري.

نو اوس باید دا خبره وڅېړو چې څه ډول کولای شو د ستړیا مخنیوی وکړو؟ دغه مساله هم څېړنه غواړي.　　　　(په ۲۰ مخ کښې)

د طب د پوهانو په عقیده ستړیا په بدن او روح کښې د یوه عمومي هیجان څخه عبارت ده او روحي ستړیا حتی په هغه موقع کښې چې بدني فعالیت و نه شي په بدن کښې منعکس کیږي.

هغه زده کوونکي چې غواړي د شپې درس ووايي او خوب و نه کړي که څه هم په درس ویلو موفق نشي د ستړیا احساس کوي او وروسته خوب ورځي، همدغه ستړیا د روح څخه پر بدن اغیزه کړې ده.

په دې وختونو کښې څېړنو فرانسوي ډاکترانو د ستړیا د علتونو معلومولو د پاره د کارګرانو، زده کوونکو او سوداګرو د ډلو څخه ۶۰ تنه چې د ستړیا له ناروغۍ څخه په تکلیف و، تر مطالعې لاندې و نیول.

کارګران وايي: چې ژوند ورو ورو د انسان قواې تحلیلوي او کمزوري کوي ئې لکه څراغ چې تیل ئې خلاص شي نه لګیږي او د دغې ډلې په عقیده ستړیا زیاتره اول په پښو او بیا په اعصابو کښې احساسیږي.

ستړیا زیاتره د بدن په لاندې برخه کښې چې بدن په هغه اتکا لري احساسیږي.

پوهان معتقدي چې د بدن غړي د ستړیا په وخت کښې کوچني کیږي، غوږ د اوریدو قوه د لاسه ور کوي او په دغې حالت کښې یو زده کوونکي آزادي هوا ته ډیر ضرورت لري چې باید شاو خوا او تر ښار د باندې چکر ووهي.

سوداګر وايي: زه د خلکو د ډیرو تیلفونونو او خبرو څخه په عذاب یم او د ورځې په پای کښې داسې ګنګس او ګیچ یم چې په هیڅ نه پوهیږم.

ډاکتران د دغو درو ډلو د ستړیا په باب تر څیړنې وروسته دې نتیجې ته ورسیدل چې کار د ستړیا باعث نه ګرځي بلکې د کار شرایط ئې لوی علت دی.

امریکایان وايي چې د آزاد وخت، بیکارۍ او لذت تر منځ باید فرق وکړو.

د ۱۳ مخ پاته

# کابل په تیرو تاریخي...

تصنیف شوي دي او د «سنسکریت» د ژبې ډیر پخواني اثر دی د کابل نوم ئې په (کبها) سره راوړی دی د کابل د نامه د اوریدو سره سم ځنې قصې او افسانې لکه د «جمشید» ۱٦ کلنې پناه د (کودنك) ته، د (سهنوا) د انګه پر «ضحاك» باندې، د «کالی پمحرابشاه» او دغه دلور (رودابه) قصه چې د «رستم» مور وه او بخپله د رستم سلطنت پر سیستان، کندهار، غزني او کابل باندې او بالاخره د رستم وژل کیدل د کابل په (تنګی اللندر) کښې او داسې نورې قصې په خاطر کښې تیریږي په هر حال د دغه ښار تاریخ د لوی سکندر تر وخته پورې ښه نه معلومیږي او څه مجهول غوندې دی.

## کابل د سکندر په وخت کښې:

لوی سکندر په ۳۲۸ ق،م د هندوکش د غرو څخه تیر او (باکتریا) ئې فتح کړه او ماوراءالنهر ته ولاړ د شمال خواته تر (اوکسس) آمو پورې و نیوله یو کال وروسته یعنې په ۳۲۷ ق،م کښې د هغه دښت څخه چې ننورځ کابل پر آباد دی تیر شو او د خیبر د درې ته ولاړ که چیرې د (چکری) سنجنك منارونه او یا هغه منارونه چې د (پایمنار) په کوتل کښې جوړ شوې او خراب شوي دي د هندوانو د آثارو او د سرحدي ښو لیاره نه وي ښائي چې سکندر او د هغه عسکرو د سختو لیارو د ښو کولو لیاره جوړ کړي وي ځکه چې په تیرو پیړو کښې سختې لارې زیاتره په داړول منارونو سره د دې لپاره کیدلې چې د ګرځیدو په وخت کښې لارې ورکې نکړي.

که څه هم د سکندر په تاریخ کښې د کابل نوم په ښکاره ډول نه دی یاد شوی خو د دوی د (نیکیای) لفظ د کابل د نامه سره موافقت لري او په تاریخي اطلسونو کښې د «نیسا» نوم عیناً هغه ځای دی چې ننورځ کابل دی او د «نیسا» لفظ د تحریف په لحاظ

ښاری «نیکیا» دی.

د یونان مشهورو جغرافیه دانانو لکه (بطلیموس) او (میترابون) چې په لومړی قرن کښې ژوند درلود هم د کابل نوم په (کابورا) او (ارتوسپانا) یاد کړی دی.

## کابل تر سکندر وروسته:

کله چې سکندر پنجاب فتح کې نو هلته یې یو یونانی سلطنت جوړ کې او وروسته د غرب له خوا څخه بلوچستان ته راغی خو په ۳۲۴ ق م کښې مړ شو وروسته د کابل په گډون د ټول افغانستان اداره د «سلوکوس» له خوا چې اصلی نوم یې سکندر ؤ کېده او د دغه یونانی سردار سلطنت په «باکتریا» کښې د ۳۹۲ تر ۲۸۱ پورې دوام وکې خو په دغو وختونو کښې د هند په څېنو ایالاتو کښې د (چندر گپت موریا) تر مشرۍ لاندې یو حکومت جوړ شو که څه هم سلوکوس ډېر کوښش وکې چې پنجاب بیرته ونیسی مگر ناکامه شو او په پای کښې «چندر گپت موریا» ته تسلیم شو، بدې توگه پاروپامیسوس Paroŝpa misus د (هندوکش او پامیر) او (جدروزی) Ged rosie (بلوچستان) دده په حکومت کښې شامل شوه، دغه سلطنت د چندر گیت دلمسی په وخت چې مهاراج آشوکا نومېدی ډېر وسعت پیدا کی آشوکا د ۲۷۳ پیا تر ۲۳۲ ق م پورې په هند، بلوچستان او افغانستان کښې سلطنت وکې، دی په لومړی وختونو کی برهمن ؤ خو وروسته د (بودا) په مذهب کی داخل شو.

## گریکو باکتریا:

د موریا سلطنت د آشوکا تر مړینې وروسته تنزل پیدا کی او په ۲۵۰ ق م کښې باکتریا د یونانی (دیودوتوش Diodotus) په واسطه استقلال پیدا کی دغه پاچا چې (دتودوس یا دویودو توس یا دیودوتوس) په نامه یادیږی خپل ځان ته یې د باکتریا (بلخ) د ذرو ښارونو د پاچاهی لقب ورکی او د خپل نوی حکومت پایتخت یې (بلخ) وټاکی

د دغې سلسلې پاچاهانو ۲۰۰ کاله حکومت وکړ (دمتریوس) چې د (اوتیدوس) زوی او د دغې سلسلې څلرم پاچا دی افغانستان او آن له پنجاب یې تر لاس لاندې ؤ او د دوی سکې د افغانستان په موزیمونو کی موجودې دی

خو دغه سلطنت هم په ۱۲۶ ق م کښې د هغو کوچی قومونو او ترکمنو له لاسه ضعیف شو چې د منځنی آسیا څخه یې پر دوی پرغلونه کول له بدغه وخت کښې (منان دروس) د کابل او پنجاب پاچا ؤ او سلطنت یې تر ۱۴۰ ق م پورې دوام وکی په پای کښې د یونانی (هلیو کلس) څخه د باختر سلطنت د لاسه ووت.

هر نگه چې بدغه وخت کښې د کابل پاچا یونانی (هرمایوس) ؤ، نو دده اقتدار هم ویوه دلیس ته چې یوشی (کوشانی) نومېده انتقل شو او هغه د ۲۰ څخه تر ۲۵ ع کال پورې په کابل کښې سلطنت وکې.

## لوی کوشانیان:

تقریباً ۹۰ کاله تر میلاد دمخه یو قوم چې په کوشانی سره مسمی ؤ او چینیایان هغه (یوچی) بولی پر باکتریا یې تصرف پیدا کی.

د کوشانیانو لومړی پاچا (کدفیسیس Kadphisis) ؤ چې بکتریا، کابل او پنجاب یې ونیو تر ده وروسته (گوندوفرنیس Gandaphernes) په تخت کښېناست او په ۸۰ ع کال کښې د ۷۷ کالو په عمر مړ شو او زوی یې چې دوهم کدفزس (هیما) نومېدی په کابل کښې پاچا شو ده د ۸۵ ع څخه پیا تر ۱۱۰ ع کال پورې سلطنت وکی او د مملکت حدود یې تر گنو (گنگا) پورې ورسول خو وروسته د چین سره په جگړه کښېووت او په نتیجه کښې یې باکتریا او کابل له لاسه ووتل او په ۱۱۰ ع کال مړ شو (کنشکا) چې د همدغه پښت څخه ؤ او په ۵۰ ع کال کښې یې په کندهار کښې حکومت کاوه کابل او باکتریا یې بیرته ونیول او په (کاشغر) کښې یې چینیانو ته سخت شکست ورکی او خپل سلطنت یې ډېر پراخ کی. «نوربیا»

د غلام دستګیر (میملوال) ژباړه:

# زما عکس له ما څخه مه غواړه

د دیوالي لوی ساعت عقربو نو ویشتو بجو ته شپږ دقیقې پاته وې چه د تجارتي کښتۍ کپتان خپله کښتۍ ودروله او ساعت ته ئې د دې د پاره ځیر سو چه وخت په دقیق ډول ورته معلوم کړي. په دې وخت کښې ده

د خپل زړه تکانونه حس کړل، د مینې حرارت ئې په ټول وجود کښې غزونې وکړې، زیات ناراحته او بې ناآرامه سو.

د سفیشن د اعلان سره سم باید او د ګاډي شپږ دقیقې ورو وسته راورسیږي او دی د خپلې هغې محبوبې سره کتنه وکړي کوم چه هیڅ ئې نه وه سره لیدلې، خو د مینې ډک لیکونه ئې زیات ورته رالیږلي وه.

کپتان اجمل خان د ځان سره فکر کاوه او د هغې شپې خاطره ئې ور په زړه کړل کوم چه د تاپا په دریاب په منځ کښې د اوبو د سخت طوفان څپو د هرې خوا د ده

پر کښتۍ باندې یو بې رحمه حمله راوړې، نژدې وه چه ده او په کښتۍ دې د اوبو په منځ کښې ډوب کړي او دی دې د نیستۍ و منګلو ته وسپاري خو ده د عشق په قوت او د خپلې محبوبې د تودې مینې څخه ډک لیکونه په مرسته

خپل ځان د مرګ څخه وژغورلی. ده دې پیغلې ټول هغه عشقي لیکونه کوم چه ده په دوامه ئې ورته رالیږل ټوله ئې د ځان سره ساتل او په هغو به ئې د مینې تنده ماتول. ده په خپل یوه لیک کښې هغې ته داسې لیکلي وه:

زما ګرانې محبوبې! باور وکړه چه زیاته دا ته ګرانه ئې او ستا ټول لیکونه د ورځې څو څو ځله د دې د پاره له خپلې مطالعې څخه تیروم او داسې فکر کوم چه ستا ښکلی وجود جسماً او روحاً له ما سره دی. زه چه هر وخت د دریاب په منځ کښې د کوم خطر سره مخامخ کیږم لیکونو ته دې نسبت ډېر ډېر ګورم چه د دریاب

د لیونیو څپو له آزاره څخه خلاصیت پیدا کړم او د مرګ سره په مبارزه کښې بریالی سم. خو د مینې بې حده تلاش ما پر دې بولو کښې د ننه نه پریږدي او ودي

ته مې الهباسي چه ستا ښکلې څیره له نژدې څخه ووینم او ستا سره د لیدنو کتنو په ترڅ کښې د بریالیتوب چانس ترلاسه کړم.

په دې وخت کښې د ویشتو بجو ته یوه دقیقه پاته وه چه اجمل خان زیات هیجاني او ډېر ناراحته ښکاریدی او دا هغه وخت و چه دی له کښتۍ څخه را کښته شوی و او ساحل د ننداره چیانو، مسافرو او د هغو د دوستانو

په شور ماشور کښې د خپلې محبوبې په لټه و. اجمل چه د خپلې محبوبې سره د کتنې د پاره هم دا ځای ټاکلی و هرې نجلۍ ته ئې په ځیر ځیر کتل او له دې څخه

ویریدی چه ده ناآشنا محبوبه ور څخه تېره نسي. ده ته هغې په خپل لیک کښې څرګنده کړې وه «چه زه به د اور ګاډي څخه په داسې حال کښې را کښته سم چه پر سینه به مې سور ګل ځومبلی وي او په لاس کښې به مې د «بې ګناه زخمي» په نوم هغه کتاب وي کوم چه زما ځانګړی اثر دی.

هو اجمل خان هم د دې دا کتاب لیدلی و ده یوې خوا او بلې خوا ته پر دې نجلۍ پسې ځار کاوه او د هغه کتاب په محتویاتو کښې ئې فکر کاوه کوم چه ده د ګرانې محبوبې د ځان اثر ګڼل کیدی. ده د ځانه سره ویل

دا څو نه ځیرکه نجلۍ ده چه د خلکو د ژوند حیات او خصوصیات ئې درک کړي او ډېر ښوخ او خوږ داستان ئې باندې لیکلی دی. اجمل د دې کتاب د مطالعې څخه

د استفادې په صورت کښې د هغې په ځان ته معلومه کړې او د هغې سره ئې په لیکنو کښې مینه او علاقه پیدا کړې وه. هغې هم د ده و دې عشق ته په خپل لیک کښې

بو مثبت جواب ور کړی وو د دی نجلی
ته دا تو میاشتو په موده کښی د
اجمل له خوا په پرله پسی ډول لیکو نه
رسیدلی وه خودې هم د هغو ځول

جوابونه ورته رالیږلی وه نو په
دې نسبت اجمل متقین و چی زه ددې
کتاب د مؤلفی په زړه کښی هغو نه

محبوب یم لکه څرنګه چی دا زما
په زړه کښی ځای لری خو هغی
وده ته تر یا په بودی خپل یو عکس
هم نه و رالیږلی او دده ددې

غوښتنی په مقابل کښی ئې داسې
ورته لیکلی وه:

که چیرسته امینه له ماسره په
رښتیا یو وبا که مینه وی نو زما د
عکس درلیږل و تاته هیڅ مفهوم
او ارزښت نه لری ته فرض که چی

زه ښکلی یم او ته زما د ښکلا په
خاطر ما دوسته ګڼې خو زه له داسې
عشق او داسې دوستی سره هیڅ

علاقه نه سم ښودلای بلکه کرکه
ځنی کوم دا ځکه چی هره ښکلا
زوال لري که پدی فکر کښی ئې چی
زه بوه بې کسه او ساده نجلی یم

او ته زما د بې کسی او سادګی
په خاطر زما سره مینه بالی نو ایمان
ولره چی زه له داسې مینی څخه

رنځ ګالم او فکر کوم چی زما
سادګی او بې کسی ته مجبور کړی
ئې چی زما پر مخ دی د عاشقانه
لیکو نو ور خلاص کړی دی نو په

دې اساس زما عکس له ما څخه
مه غواړه او له هغه څخه تیرسه .
دا چی ما پدې ایکث کښی

و تا ته حقایق و لیکل هیله ده چی
خوابدی نه سی دا ځکه چی یو
واقعی انسان له حقایقو څخه

نه تښتي او ژوند بیله اخلاقي جرأت
او میړانی څخه هیڅ مفهوم او ارزښت
نه لری .

زه دوی هفتې وروسته د خپل
اکادمۍ سره د واده د پاره
د کراچی نه د رحیم او پاړ یی چی
ستا سره دی داورګاډی په سټیشن

کښی ووینم نو تر هغی ور ځی
پوری د خپله ځانه سره یو قاطع
تصمیم ونیسه چی آیا د ماسره

په ستا مینه دائیمی وې او که
موقتی ده او ته چی د واده
ځوانان یو اددواده و قانونی
سن ته رسیدلی یو نو حق لرو چی

ژوند ملګری په خپله خو ښه
وټاکو دا ځکه چی د اد هر ځوان
یو منل شوی او روا حق ګڼل
کیږی .

د بنځو بجو څخه ددې دقیقې
تیری سوی وی او د کپتان پر ژړه
باندې ارزه پر ته وه په پرله پسی

ډول ئې سګریټ څکول او هره
لاړ ئې په بیتابی سره ځان ته مګر
کله چی ساعت پنځه بجی او پنځه
دقیقې وښودلی د اورګاډی

ګولی ډ بی پر سټیشن باندې
ودریدلی او پلتي بانو وړ و ځغستل
چی د مسافرو سره د هغوی د مالونو

په وړلو کښی مرسته وکړی مسافران
د ریل له منځه څخه را کښته کیدل
او دا او بو د څپو په څیر په حرکت

کښی وه اجمل خان د هری هغې ښځی ته
ځیر ځیر کوم چی دا اورګاډی څخه په ئې
پر ځمکه باندې پښه ایښودل بالاخره
یوه ښځه چی جګه لوړه، توره ویښتان

آبی سترګی او سره شونډان ئې درلودل
او سپینه ساډې ئې اغوستی وه له اورګاډی
څخه را کښته شول او اجمل خان په پیژنده

هیله وهغې ته وروړاندې سو خو کله
چی ئې له نږدې څخه ولیدل نه ئې په
لاس کښی کتاب ټوړنه ئې پر ځیګر
باندې ګل .

اجمل خان هم دهغې سره خبری
بې لزومه وګڼلی مګر په دی وخت کی
یوی بلی ښځی چی د سن په لحاظ پخه

ښکاریدل دده توجه جلب کړل نوموړی
ښځه چی د ښکلی نجلی تر شا راهی وه
عمر ئې د (۴۰) کلو نو څخه زیات اټکل
کیدی خو ددې ښځی پر ځیګر باندې

سور ګل او په لاس کښی ئې کتاب و
کپتان په اول کښی ددې ښځی د زیات
سن نا وړه شکل او بې تناسبه ګړه وړه

څخه زیات خوا شنی سو خو کله چی بیا
دهغې د لیکوالی وهنری او قلمی قدرت
ته متوجه سو خپل ځان ئې ډاډه کی یله
کوم ځنی څخه دهغې و احترام ته ور

وباځیدی او ورته وئی ویل:
زما ګرانی محبوبی خوښ یم چی
په دا غلاست در ته ور وایم زه د میاشتو

میاشتو راهیدي خوا ستا دلیدلو د
آرزو په اور کښی سو ځل کیدلم اوس
وپاړم چی له تاسره له نږدې څخه آشنا
کیږم .

نورو یی ښځه په تعجب او حیرت
کښی و لو یدل، (نور په ۲۸ مخ کښی)

عبدالمنان امين په قلم :

# د هند د نيمې وچې

# وروستی پېښې

د هند او پاکستان ترمينځ ۱۴ ورځنۍ جګړه د جمعې په ورځ دلیندۍ په ۲۶ چې د ډسمبر د ۱۷ نیټې سره برابره وه د افغانستان په وخت په شپږ نیمو بجو او ۴۵ دقیقو چې د هند د جي ایم ټي ۱۴ بجې او دیرش دقیقې کیږي د داوربند په نافذېدو پای ته ورسیده.

دغه اوربند د هند لخوا وړاندې او د پاکستان د جمهور رئیس یحیی خان له خوا هم ومنل شو.

د هند او پاکستان تر مینځ جګړې د ختیځ بنګال د ههٔ لسو ملیونو پناه وړونکو په موضوع پورې اړه درلوده چې د دې مياشتې

د مخه له خپل هیوا د ختیځ پاکستان څخه د هند خوا ته تللي وه .

د ټیر کال په انتخاباتو کښې چې د ختیځ پاکستان ګوندی مشر شیخ مجیب الرحمن د پاکستان په پارلمان کښې زیاتې چوکۍ لاس ته

راوړې جنرال یحیی خان له دې پر پا لیتوب څخه خوښ نه سو او د پارلمان پر انستلو ټال کړه او بیا ئې تو که ئې په بنګال کښې په عمومي قتل او قتال لاس پورې کړ

او هغه وخت چې شیخ مجیب الرحمن بندي او د هغه ګوند غیر قانوني اعلام شو او له دې امله خلکو په عمومي ډول پښې

لاس پورې کړ .

وروسته له هغه چې په بنګال کښې د پاکستان وسله وال قواوو او نظامي حکومت د چاودواکۍ تر لاسه کړی

نو د هند خاورې ته د بنګالي اوسیدونکو لیږد پیل هم ورځ په ورځ مخ په زیاتیدو سوه تر څو چې د هند حکومت دا موضوع

د نړۍ سوله غوښتونکو هیوادو د ملګرو ملتو مؤسسې ته وړاندې کړه څو د پاکستان حکومت مجبور ده کړي خپل پناه وړونکي بیرته ور وغواړي .

هکه د هند حکومت له دې درکه د زیاتو سیاسي او اقتصادي سختیو سره مخامخ سو او دغه نیمګړ تیاوې او مشکلات

د دې سبب شوه چې هند په بنګال کښې مداخله و کړي نو هغه وچې په جګړه ئې لاس پورې کړ .

## د هند او پاکستان د قواوو مقایسه :

| | | |
|---|---|---|
| هندي عسکر | ۹۸۰۰۰۰ | کسه |
| پاکستاني عسکر | ۳۹۲۰۰۰ | » |
| هندي الوتکې | ۶۲۵ | عدده |
| پاکستاني الوتکې | ۲۸۵ | » |
| هندي توپونه | ۳۰۰۰ | عرادې |
| پاکستاني توپونه | ۱۱۰۰ | عرادې . |
| هندي ټانکونه | ۱۴۵۰ | عرادې |
| پاکستاني ټانګونه | ۸۷۰ | عرادې |

د دې نظامي تفوق په اساس هند بربالی شو چې ټول شرقي پاکستان ونیسي او پاکستاني

قواوو ته سخته ماته ور کړي، خو د جګړې په موده کښې د دواړو خواوو د سرو او مال تاوان په صحیح تو که څرګند نه سو څکه چې

د جګړې په میدان کښې کوم خارجي خبر یال نه ؤ نو د نړۍ مطبوعاتو صرف د دواړو حکومتو د

نظامي خبر یالانو په ټو نه خپر ول. کله چې د پاکستان وضع ډیره خطرناکه سوه نو جمهور رئیس یحیی خان د یوه ائتلافي حکومت

په جوړېدو لاس پورې کړ او د هغه حکومت د صدارت چارې ئې د نورالامين او د خارجه وزارت

چارې ئې د ذوالفقار علي بوټو ته وسپارلې .

بوټو سمدستي نیویارک ته لاړ چې د ملګرو ملتو د مؤسسې د امنیت د شورا په غونډه کښې

(۴۴مخ)

برخه واخلی او هم د هند او پاکستان د جګړو په باب د نړۍ لویو هیوادو د نمایندګانو سره خبرې وکړې او د جګړې د ختمیدو او د اوربند په نافذیدو د دوی پاملرنه جلب کړې.

نورالامین له هند څخه غوښتنه وکړه چې جنګ بند کړي او د پاکستان له خاورې خپل عسکر وباسي.

د امریکې جمهور رئیس نکسن هم د امنیت د شورا په غونډه کښې دغه غوښتنه وکړه.

د امنیت شورا دري ځله د هند او پاکستان ترمینځ د جګړو د ختمیدو او د اوربند د نافذیدو تصویب وکړ، خو د شوروي اتحاد د نماینده لخوا ویټو شو.

شوروي اتحاد عقیده درلوده چې د ملګرو ملتو د امنیت شورا په غونډه کښې باید د هغه حکومت نماینده چې هند یې بنګله دېش بولي پخپله برخه واخلي.

د قوس په ۲۵ نیټه د هند او پاکستان ترمینځ په ختیځه جبهه کښې وروسته له هغه چې پاکستاني واوي د جنرال نیازي تر قوماندانۍ لاندې هندي او بنګالي عسکرو ته تسلیم شوي، جګړې هم پای ته ورسیدې او د تسلیمي سندونه د جنرال نیازي او د هندي جنرال اروړال ترمینځ چې له کلکتې څخه ډاکې ته په همدې مقصد راغلی و تبادله شوه.

په ختیځو سیمو کښې د جګړو د ختمیدو وروسته پاکستاني مقاماتو وویل «که څه هم پاکستان د دوی نظامي ماتې سره مخامخ سو خو په یوه اخلاقي او معنوي برمختګ بریالي شوي دي»

د نیوزویک ورځپاڼې یو د ا پوره داسي وایي:

هند بنګال ته د حملې اراده له منظمو ترو پو (ټانګ او ماشیندار) څخه کار واخست.

د دواړو دواړو دښمني له هغه وخت څخه شروع کیږي چې په ۱۹۴۷ کال هند له برتانیې څخه خپله خپلواکي واخستل له هغه وخت څخه تراوسه دواړه حکومتونه په دښمني او مخاصمت سره ژوند کوي.

د ۱۹۴۹ او ۱۹۵۰ او ۱۹۶۵ کلو په موده کښې چې د کشمیر پر موضوع د هند او پاکستان ترمینځ جنګ شروع سو دواړو حکومتو دښمني یو ښکاره مسئله وګڼل سوه. نیوزویک لیکي: د هغو ګډو څخه چې د ختیځ پاکستان له منابعو څخه لویدیځ پاکستان ته متوجه دي هغه فشار او ظلم چې د ختیځ پاکستان په مقابل د هغه هیواد د حکومت لخوا کیږي ددي سیمي خلک ناچار شول چې په جنګ لاس پوري کړي.

دري ورځي وروسته له هغه چې د هند او پاکستان ترمینځ جګړه په ختیځ او لویدیځ سیمو کښې پای ته ورسیده د لویدیځ پاکستان ګوندي مشر ذوالفقار علي بوټو د پاکستان د جمهور رئیس په حیث په کار پیل وکړ جنرال یحیی خان او نورتنه عسکري لوی منصبداران او جنرالان چې د هند او پاکستان په جګړو کښې په اشتباه کولو تورن شوي وه له خپلو وظایفو او رتبو څخه متقاعد شول.

د دوه ورځو د خبرو سره سم د پاکستان د هوائي قواوو پخواني مارشال اصغرخان په یوه مطبوعاتي کنفرانس کې وویل چې یحیی خان او پاکستاني نورتنه عالي رتبه جنرالان باید محاکمه شي ځکه چې د اساسي قانون څخه یې تیری کړی دی او د هند سره یې جنګ پداسي ډول شروع کړ چې د پاکستاني عسکرو د ماتې سبب وګرځید.

بوټو چې د جمهوري ریاست او د نظامي قواوو چاري ترلاسه کړي.

د پاکستان د ائتلافي ګوند مشر نورالامین یې چې د ۷۸ کلو دی د پاکستان د جمهوري ریاست د مرستیال په حیث وټاکی.

نوی حکومت د ختیځ پاکستان ګوندي مشر شیخ مجیب الرحمن یې له بنده خوشي کړ او د خبرو لپاره یې راولپنډي ته وغوښتی بوټو په وخپله وینا کښې چې د پاکستان د راډیو څخه خپره شوه وویل چې دی د یو متحد پاکستان غوښتونکی دی او غواړي د هند سره ښه مناسبات ولري.

د بوټو په نوي کابینه کښې د ختیځ بنګال څخه هم دوه تنه وزیران برخه لري.

دصدیق الله «اجتماعي» لیکنه:



# عالي انسان

دمراجعینو سره په خلق، نرمه رویه، ودېن تندی د ښه مامور صفتونه دي مراجعه کوونکی په دې شعبه کښې تر هر څه مخکې د اخلاقي ژاشه دلشه ته اړتیالري وختې چې تاسو دېو هېږې چې دده کار قانوني وخت غواړي او تاسو پوهېږئ چې دی ددغه انتظار حوصله نلري نو څه باید وکړي چې دی خفه نشي اوهم ئې کار قانوني جامه واغوندي؟ په دې صورت کښې باید هغه ته اخلاقي معقول قناعت ورکړه شي البته دغه کار هر مامور نشي کولای چې د بې بېسوادو، سرټمبه او سرزوره مراجعه کوونکی سره په نرمه ژبه او نیکه رویه رفتار وکړي.

دغسې دراته کارونه ډېر تحمل صبر او حوصله غواړي او دغه صفتونه د عالي آمر او مامور دي.

عالي مامورین علاوتاً پر خپلو قانوني وظایفو ځنې فخري کارونه هم خپله معنوي پانګه او ملي فرائض گڼي پداسې ټولنه کښې لکه چې اوس موږ یو د متورینو بېسوادانو او مامورینو وظایف ډېر دراته دي موږ باید خپل ملي مکلفیتونه درك کړو او فکر وکړو چې اوسني شرایط او ټولنه له موږ څخه څه غواړي او موږ باید تر کله په بخوانیو زړو ډولو خپل وظایف او ماموریتونه ترسره کړو؟

زموږ دفترونه ولې ناپاك، تاریك او غیر منظم دي؟ دا ځکه چې زموږ مامورین، آمرین او مستخدمین غیر منظم دي ددې حقیقت څخه موږ انکار نه شو کولای چې که دفتري چارې دي که حسابي چارې ټولې په زړو طریقو او ناوړه شرایطو کښې توکل په خدای (ج) روانې دي، البته زموږ ناداري ددغو پسمانیو علت دی، خو د دفتر او دفتر داری سلیقه د آمرینو په خاصه پاملرنه پورې اړه لري چې شاړه ئې وکړي او پرې نږدي چې تر بد بدتر شي یا په بل عبارت پوهو شپې سبا کوي تر څو چې تبدیلېږي تقاعد کیږي او موقوفه کیږي.

دعالي آمر او عادي آمر توپیر هم دلته کوو چې عالي اشخاص او مامورین خپل ژوند د نورو د همنوعانو د خیر لپاره وقفوي او برعکس پاته خلك او وظیفه ناشناسه خپل ژوند په حرص، لوږه ودغ ساخته کاریو او ناوړو غیر قانوني اعمالو تیروي.

ددغسې یو آمر مامور د صاحب څخه زه داپوښتنه کوم:

دناوړه دودو مخنیوي دچا وظیفه ده؛ زما وظیفه ده او که ستا وظیفه؛ که چېري ئې ضرر وماته متوجه وي نو مخنیوي ئې زما وظیفه ده او که ئې ضرر تاته متوجه وي نو ئې مخنیوی ستا وظیفه ده او که ئې ضرر و ما او تا دواړو ته متوجه وي نو بیا دچا وظیفه ده چې و موږ ته ددغې تباهي څخه نجات راکړي؟

هو! دا ئې هم باید یا آسماني ملائکې او یا نور خارق العاده قوتونه زما او ستا دغه ناوړه دودونه اصلاح کړي ولې چې موږ خو په خپل خیر او شر نه پوهېږو او که پوهېږو بیا هم دخپلو دغو نامعقولو عاداتو څخه مخ نه گرځوو.

کلونه کلونه بلکې عمرونه تیرشول چې موږ دخپل ځان دخپل ورور او د خپلې ټولنې اقتصادي ملاماتونکی مصرفونه وینو او دا هم وینو چې ځیني کسان له دغه درکه په خوارۍ او دربدري اخته کیږي، ولې بیا هم موږ عبرت نه ځنې اخلو.

په قولنه کښې داسې کسان ډیر لیدل کیږي چې دخپلو ناوړو رسوماتو قرباني شوي دي او کلونه ئې احتیاج چونه، پیغورونه او لوږې لیدلې دي خو بیا وخت

ئې خپل ژوند بیرته پوځه سره بیوند کړی دی خو بیاهم دخپلو تجربو څخه ئې ګټه نه ده اخیستې او هغه ئې قوله هېرې کړې دي او کله چې بوځای په قولنه کښې دناوړو

دودو اتڼ چوپړ شي تر قولو مخ کښې بیاهم دي پکښې غورځي بوازې دا نه چې په اتڼ کښې غورځي بلکه د خپلو پخوانیو ناوړه دودو کیسې دنوي اتڼ خلکوته

په فخر سره بیانوي او پدې ویاړي چې زه خو ددا ډول دودو سابقه دار قهرمان یم.

اوس دلته سوال پیدا کیږي چې آیا ته دقولنی کم غړی یې دناوړو رسوماتو پخواني قهرمان او که دنوي اتڼ بې تجربې جوړونکی؟

که په کور کښې کومه میلمستیا یا ښادي جوړه وي دهغه توان لري که نه؟

دفاتحې مراسم دغسې وي لکه په موږ او تاسې کښې چې رواج لري چې چاته دا نه معلومیږي چې دمړي په کور کښې دښۍ خولې وا ده دی او که فاتحه؟ دا ښیزه

دیاده څوڅوله دیګونه پر دیګدانو باندي پوخته کیږي، چلمان تازه کیږي، غالي کوربچي او اوباشي او نور ترتیبات ئې صرف دواده سره دونه

توپیر لري چې سازنده نشته ځکه هم هغه دواده کالي اغوندي او دغه محفل ته تشریف راوړي نو آیا دغه دمړي تسلی ده او که دښۍ خولې ښادي؟

څنګه کولای شو چې دهمدغو ناوړو رسوماتو څخه ځان او قولنه خلاصه کړو؟ آیا دا به ئې څه چاره نه وي چې دقولنی هرغړی پخپله دیو معقول سنجش دلارې

دخپلو ناوړو رسوماتو مخنیوی دخپل ځان دخپلې کورنۍ او دخپل محیط څخه شروع کړي او ددغو اقتصادي ملاماتونکو تاوانو څخه ځان خلاص کړي؟ پدې لار کښې

مبالغه، تبلیغات، ارشاد او لارښوونې کیدونکي کوښښونه قوله دعالي انسان وظیفه ده که څیرې پدې لار کښې که بریالیتوب ستا په برخه شو نو په دښتیا چې ته یو عالي

انسان ئې او که نه نو عادي انسان بلل کیږې.

همدارنګه چې موږ غواړو چې دقولنی اصلاح دقولنی دغړو دفرد څخه شروع کړو او هرچاته په خپل شغل او کسب کښې دانصاف او عدالت توصیه کوو پدې ترڅ

کښې تجار او دهغه شغل هم زموږ تر سترګو کیږي چې دغه ورور خپل ځان ته متوجه شوي دي چې دده موجودیت دقولنی لپاره ګټه لري او که ضرر؟

څه به داوي چې دغه قضاوت موږ پخپله دغه ورور ته ور وسپارو چې دده اعمال دي پخپله مطالعه کړي چې دی خیرخواه او دجامعې مفید غړی دی او که خودخواه او مضر غړی؟

پدې ضمن کښې څو پوښتنې منځ ته راځي چې دي ئې پخپله قضاوت ته پریږدو آیا تاسو چاغلی تاجر صاحب دخپلې قولنی مسلمانان غړي ځان شمیرئ او که نه؟ او

که ئې بولئ نو نظر دقولنی ونورو غړو ته تاسو دتجارت دګټې او دانګې په ضمن کښې ایری او نور دي هیوادو ته سفرونه کړي دي او ددغو هیوادو تاجران او تجارتي

دستګاوې، فابریکې او کمپنۍ به موهم ډیرې لیدلي وي او پدې ترڅ کښې دهغو تاجرانو دملیت پرستۍ او وطن دوستۍ امانت داري او ښو اخلاقو څخه خواږه

خاطرات هم لرئ او دلته چې وطن ته تشریف راوړی نو علاوه پر دغه چې په خپل شغل (تجارت) کښې ددوی څخه رضائیت لرئ بلکه ددوی نورې ادارې د دستګاوې

حکومتي اورګانونه اجتماعي سیسټم او عملي تنظیم او نور خارق العاده ترقي ئې قوله ستاسو خوښې شوي او برعکس دخپل محیط څخه شکایت لرئ او وایئ چې

داموږ ولې ترقي نه کوو او داحکومت ولې رشوت نه منع کوي او دیو کراسي ولې په موږ کښې وده نه کوي او داسې نور.

ډیر به ارزښت چې زموږ ددغه ویجاړ ژوند علتونه موږ او تاسې په خپلو ځانو کښې ولټوو او خپل اعمال دعدل او انصاف په تراز وتول کړو څو دقولنی ملامت

اصلاح او دخیرخواه ته ئې آفرین ووایو.

آیا دا به څه نه وي چې زموږ هیوادنه دنورو هیوادو

څخه د تجارتي مالونو په عوض
کښې صنعتي دستګاوې او فابریکې
راوړي؟ علاوه پر دغه چې د وطن د
پیداوارو څخه ګټه اخلو بلکه

په زرو بیکاران مو د محیطي فساد و
څخه وغورل کیږي او په کار
لوېږي داچې حکومتي مامورین

رشوت خوري ملادي ماته شي مګر
په ګمرک کښې تاسو او ما مود
صاحب دواړه څرنګه پر مردار
لاېش سره یو ځای شي او د ملت و مال

او د قانون د تخریب ته ملاتړي؟ دلته
سړي ستاو تقوا او د مامور د صاحب
وظیفه شناسي ته حیرانیږي.

آیا دغه تاوده تجارتي
مالونه چې زموږ د خلکو او بیچاره
وطنوالو ته دیوه تدریجي مرګ
او دائمي پریشانۍ څخه بل مفهوم
او معنی لري؟ تر کله تاسو
راوړي؟

دغه پلاستیکي ډول ډول چقۍ شیان
او نور بې ارزښه او د وطنوالو
د دربدۍ تجملي بې لزومه سامانونه
ترڅه وخته پورې تاسو دلته راوړئ؟
دغه د وطن د پیمانې اساسي اقتصادي
علتونه نه ګڼئ؟ آیا دغه شریف شغل هم
دغه معنی لري؟ موږ او تاسې باید
څو ته کړو بدو او د څو دوستانو

په څیر یو و بل ته عیبونه که شخصي
وي که اجتماعي وښیو. د سود
خوري، پوس څوک بولي؟ مسکین

خو ته سي سود خور کېدلای د زکات
او نورو خدایي حقوقو څخه تر کله
او ولې ځان ژغوري؟ زه داته وایم
چې نفلي حج ولې کوي بلکه اوی
څښتن ته دا دوعا کوو چې قوله

(د ۲۲ مخ پاته)

عالم اسلام هر کال دا قدرت
پیدا کړی چې د بیت الله شریفې او
آنحضرت رسول مقبول صلی الله

علیه وسلم په زیارتونو مشرف شو
پدې شرط چې موږ د اسلامي
نورعالي فرائض هم څه ادا کړي
وي.

د اسلام په مقدس دین کښې
دا توپیر نه شته چې د مسکین زوی

په د اسلام تر بیرغ لاندې د عسکري
مقدس خدمت کوي او ته او ستا
زوی په دغه څخه په نا مشروع

لارو ځانونه ژغوري په کوڅه
کلي، او بازار کښې ستاسو د دنیا
او شتمنۍ څخه بیوزلانو او بیچاره

ګانو همداړنګه بیکارانو او
بې کسانو څه معنوي او مادي
فیض او برکت لیدلي دي؟ تاسو

په اسلام کښې د بېواپانو وظائف
او د حقیقي مسلمانانو د اغنیاوو
عالي کارنامې مطالعه کړې

دي چې هغوی او تاسو څه،
او څو نه توپیر لري؟ ایا ځانته دا امید
نه لرئ چې د هغوی پشان د دنیا

او آخرت سعادت مو په برخه
شي؟ موږ یقین لرو چې تاسو به د
خپل ځان په باب غور وکړئ او د

دعالي صفاتو خاوندان شئ.
«نور بیا»

# زماوکس له ماځخه...

وایي خندل او وایي وېل:
زویه: هغه څوک چې ته غواړې زه نه یم. په داسې حال کښې چې لاس مې
وهغې تجلي ته نیولی وو چې
سپینه ساړه یې اغوستي وه.

زیاته یې کړل هغه څوک چې تجلی
چې سپینه ساړي یې په تن کښې ده
له ماځخه یې هیله وکړه چې د دې

کالي دا غوندم او د اسور ګل
پر څکر و څړوم او د دې کتاب
په لاس کښې ونیسم.

زویه زه ستا محبوبه نه یم
او هیڅ له تاسره نه پیژنم.

پدې وخت کښې ځنګلي تجلی
له سترګو لیرې شوې وه او یو
میرمنې واجمل ته وویل:

زویه! دا چې ما پدې کار
باندې خواشنې کړی بخښه غواړم
د دې تجلی کتاب چې ما په لاس

کښې او لباس مې زما په تن کښې
دي وما ته یې وویل: که چا زما
دایدلو هیله درلوده کولای

شي چې داورد ګلابې د سقیشن،
په هوټل کښې زما د تاودو هر کلي
سره مخامخ سي.

نو لطفاً ورسه چې ستاد
زړه محبوبه په همدې هوټل کی
ستا په انتظار ده.

هغه ژچي اجمل خان هم په ژیر
چټکې د هوټل پر لور وخوځید
او له دې څخه یې بوتو د تشکر
وکي. (پای)

پښتو کوونکی: کریم

# هغه لوبغاړی چې سندرې وایی

## ده غوښته چې طبیب شی خو د هغه ذوق دی سندرغاړی کړ

«دو برتو بلانکو» بوله ډېرو مصروفو او مشغولو سندرغاړو څخه دی چې د هغه سره د مصاحبې کولو لپاره ورځې ورځې پکار دی.

کله چې د المانی مجلو څخه یو خبریال د هغه د کور دروازه د مصاحبې کولو لپاره وټکوله،

د هغه منشی (سکرټر) په پاسته آواز سره ووېل: بخښنه غواړم چې بلانکو په کور کښې نشته، اصلاً هغه دومره مشغوله دی چې د دنیات

شمېر د رسېدلی لیکونو د جواب ورکولو فرصت نه لری خو که د غونډې په ۱۲ بجې دا شی د کتنې

امکان پیښ شته. خبریال بالاخره د کولای شوای چې د غرمې په یوه بجه د بلانکو سره ووینې او خپله مرکه او مصاحبه بشپړه کړی.

بلانکو د موسیقی د ننداړتون او په فستیوالونو کښې د پاپ سندرغاړی، په رښتیا یو ده.

وخت نه لری چې د قولو او عدو او لیکونو ته قانع کوونکی جوابونه ورکړی.

له دې امله یې سکرټر د ملاقات کوونکو ته وخت او نوبت ورکوی.

بلانکو سربېره پر خپل مشغولیت پدې ورستیو وختو کښې یو فکر مچکه هم د انیولی ده او په ډېره ښه د هغه په آبادولو بوخت دی. دغه تعمیر د مونشن په ښار کښې واقع سویدی.

دا سندرغاړی اصلاً د کیوبا دی خو پدې ورستیو وختو کښې هیڅ کیوبا ته ندی تللی. دده کورنی خبریالانو ته چې دیوه ښار څخه بل ښار ته او دیوه هیواد څخه بل هیواد ته یې سفر کاوه.

بلانکو په ۱۹۳۷ کښې زېږېدلی او دوولس کلن لا نه ؤ چې په «ماډرید» کښې مکتب ته داخل شو. او ورورسته د مدرسې د پای ته رسېدو سره سم د پلار

په غوښتنه یې د طبابت فن غوره کی او په تحصیل بوخت شو. خو علاوه پر تحصیل یې سندرې ویلو ته هیله

وه چې هره ورځ یې د هغه تمرین او مشق کاوه. د مد جرمنی د کلاسیک آهنګونو له ویلو څخه خوند اخستی او کلاسیک آوازونه او غزلی دده یوازنی عشق ؤ او بس.

په ۱۹۵۷ کښې یې د فرانکفورت په ښار کښې د لومړی ځل له پاره د پاپ غزل وویل چې ډېره زیاته د پاملرنې

وړ وګرځېده او د یو زرو اته سوو اماتورانو سندرغاړو څخه یې د کال جایزه یوړه، دده یوازنی په خاطره یې ژوند کښې همدغه بلل کېږی هغه آهنګ چې ده وو ایه (جز بل) نومېدی او د هغه سره تر حد زیاته مینه لری.

ورورسته له هغه د ډیکالد چوړ دولو فلم اخستلو او تلویزیون دستګاوو څخه ده ته یو شمېر غوښتنې ورورسېدې چې ده خوښې یې دده برابره کړه.

هغه په داسی حال کښې چې په جرمنی نه یو هیده د خپلی میرمنی څخه یې جرمنی زده کړه او دده ملګرو پدې لار کښې دده سره زیاته مرسته وکړه.

بلانکو د لومړی ځل لپاره (د افریقایی ستاډی) په نامه فلم کښې په کار پیل وکړ چې چندانی د توجه وړ ونه ګرځېدی.

دده دوهم ځل لپاره په ۱۹۶۹ کی دده لوی چانس د جرمنی د پاپ د فستیوال په موسیقی کښې ګډون کړی ؤ چې لومړۍ جایزه یې ترلاسه او ځان یې د مشهورو سندرغاړو په لړ کښې داوستی.

بلانکو خپله زیاته مینه د آواز ویلو او ورورسته د کورنی ژوند سره ښیی.

(دپشتی په ۳۴ مخ کی)

نثر و ادب

د «ارسطو» اثر:

# دوستي

دوستي یوازې یو ضروري امر نه دی بلکې یوه ډېره شریفه او آبرومنده عاطفه هم ده .

ځینې وایي چې: دوستي یو ډول مشابهت دی او هماغه اشخاص یو د بل دوستان وي چې یو له بله مشابهت لري د همدې امله باز له باز سره او کوتره له کوترې سره الوزي .

ځینې نور بیا دې عقیده دي چې که دوه تنه یو کار او یوه پېشه لري نو هغه هیڅکله نشي دوستان کېدلای، ځکه چې د فطرت پر قوانینو استناد کوي لکه (اوری‌پیدس) چې وایي: د وچې ځمکې باران خوښوي او باراني اورېځې غواړي چې پر ځمکه باران و اوروي .

«هر کلیتس» بیا دې فکر دی چې ضدیت د نوي کېدو موجب دی او موافقتونه له مخالفتونو څخه پیدا دي .

دا خبرې به پرېږدو او دا به ووایو چې د دوستۍ موضوع څه شی ده خیر، که لذت، که منفعت؟ هغه کسان حقیقي دوستان نه دي چې د منفعت لپاره دوستي کوي او په ګټه میین دي د دوی دوستي به تر هماغه وخته وي چې یو له بله ګټه کوي او د ګټې امید موجود وي، دغه دوستي چې په لذت بناده او په خوند پسې ګرځي هغه هم له حقیقي دوستۍ نه خبر نه دي؛ دغه دوستي هم بې بنیاده ده ځکه چې لذت هم لکه منفعت بې ثباته دی او ژر ژر بدلیږي په داسې دوستیو کښې نو هیڅ یا مقصود د نه دی بلکه لذت یا منفعت اصلي مقصد دی بوله او حقیقي دوستي هغه ده چې د ښو خلکو تر منځ پیدا کیږي او په ښه والي بنا وي .

هغه خلک چې د خیر خاوندان دي او یو د بل خیر غواړي مینه یې یو له بله ذاتي او حقیقي ده .

دا دوستي په خیر او فضیلت بناده او بیا یې ډېره ټینګه ده؛ دوست هغه دی چې د دوست خیر غواړي او خیر ور رسوي. په دوستي کښې دا شرط دی چې یو له بله له عواطفو څخه احساسات او عواطف د واړو خواوو ته معلوم وي.

په دوستي کښې آمیزش او الفت ناسته، ولاړه ضروري ده؛ دوستي د مساوات په اساس ټینګیږي چې باید یو د بل حق ادا کړي او هر یو د بل محب وي.

ډېر خلک دا غواړي چې د نورو محبوب شي او بخپله د هیچا محب نه وي په همدغه وجه خپل متملقین په ځای د غوړوي مګر دوستان نشي پیدا کولای .

متملق هغه دی چې خپل ځان ټیټ ګڼي یا لږ تر لږه خپل دوست ته دا ښيي چې زه به تا دومره نه یم ګران لکه چې ته په ما ګران یې ځکه دغسې دوستانو ته دوستان نه شو ویلای

دوستي هغه مینه ده چې له دوست څخه بېرته انعکاس کوي او له یوې خوا څخه نه وي. دغه سبب دی چې د انسان مینه د سرو او سپینو سره یا د ښو جامو او یا د ښو خوراکونو سره دوستي نه ده، ځکه چې له یوې خوا څخه ده او بېرته انعکاس نه کوي .

په دوستي کښې مقابله یا المثل په کار ده او بې دوستي مساوات نه ده.

مینه له یوې خوا څخه پیدا کېدلای شي، مګر دوستي له یوه طرفه څخه هیڅکله نه وي.

دوستي که د لذت یا منفعت په اثر وي کېدای شي چې بد خلک د بدو خلکو سره یا ښه اشخاص د بدو کسانو سره دوستان شي مګر خیر او فضیلت د دوستي اساس وي نو د ښو او بدو تر منځ دوستي نه پیدا کیږي . حقیقي دوستي هماغه ده چې د نیکانو او ښو خلکو په پاکو زړونو کښې ځای لري او په خیر او فضیلت بنا وي.

# صناعتي او توليدي چاري

«پاته پر خه»

شيريني او شربتونه ئې جوړول، د حاجي محمد حسين د ټاردو او دلو صناعتي دستگاه او داسې نورې د شکست سره مخامخ شوي دي.

دغا برېکو او صناعتي دستگاه ؤ ته چلولو کښي پرته له اومو موادو او فني پرسونل د روزلو نه يو مهم ضرورت د کافي بر ښنا شته والي دى او کندهار که څه هم اوس د غا بريکو او صناعتي توليداتو د تقويې او زيات انکشاف د پاره بو ره بر ښنا نلري خو په دو د اتلو نکو کلونو کښي چې د کجکي د او بو بر ښنا به په کار

ولويږي په هلمند او کندهار کښي زمينه د تخنيك او صنعت زيات انکشاف ته چمتو کيږي بلکې کيدای شي چې د بر ښنا څخه د و اقر بميو نو په چالانه کولو او تر مځکې لاندي او بو څخه د کر ني او او بو لگولو په برخه کښي زيات کار واخستل شي او په لږ مصرف سره زراعتي توليدات زيات شي.

موږ باور لرو چې د کندهار د حساسو او وطندوستو سوداگرو سره د خپلو خلکو د پيکڼي فکر ملگرى دى او له دغه کبله په هر مساعد فرصت کښي خپل وس د صناعتي چارو او توليداتو د پر مختگ څخه نه سپموي او کوشش کوي چې د دغه ستر مطلب د پاره د دقيقي مطالعې نه وروسته په صنعتي او توليدي چارو لاس پوري او خپلو هيوادوالو ته خدمت نه سپموي.

کندهار ته دوړو صناعتي دستگاه ؤ د اوړل او په کار اچول هم د خصوصي پانگي د خاوندانو او هم د دې

سيمي او نورو هيوادوالو په گټه دي او په آينده کلونو کښي زمينه د داز فعاليتونه د هر ه پلوه مساعده ده او

زموږ خلك او منورين هم د حساسو سوداگرو څخه دا غوا ړي چې هغوى په دغه ساحه کښي خپل فعاليت زيات کړي څو چې د خلکو په نز د محبوب و گر ځي نو دا امکان زيات دى چې په کندهار کښي و ړو و ړو صناعتي فعاليتو نه پر مخ ولاړ شي.

غلام محي الدين «ايوبي»

«د ۳۰ مخ پاته برخه»

دې د ښځې او يو ښځې کلنی لور څښتن دی او په دې نژدې وختو کښي به ددغه د وهم اولاد و دنيا ته راشي.

بلانکو هيله لري چې خپله کلنۍ رخصتي په پر تگال کښي تيره او هلته د گلف لوبه زده کړي. دې د گلف لوبه ډيره ساده او آسانه لوبه گڼي.

دې د جرمني او هغه د اوسيدونکو سره زياته علاقه لري او خپل شهرت او محبوبيت هم د المان د خاورې تحفه گڼي د دغه سببه دی خپل ځان د المان ساخت لوبغاړی بولي او ددې خاورې د اوسيدونکو زيات احترام لري.



د کابل دښار د پروان په کارته کی د افغانی سری میاشتی د صحی کلینیک
د مرکز د فعالیتونو څخه